بسم الله الرحمن الرحيم

# الفاظ الكفر


مؤلف

علامه بدر الرشيد الحنفی

شارح

شیخ ملا علی قاری صاحب

پښتو مترجم

مولوي عبدالعزیز ((تسلیمی))



مکتبه خانیه

ارگ بازار کندهار افغانستان

په فضل د رب ذی الجلال په نیته: ۱۳۸۶\۱\۲۳، دکتاب د ژباړولو څخه فارغه سولم، ولله الحمد والمنة

# د کتاب دننه مضامین او فهرست

| | | |
|---|---|---|
| | سور پیدا کړي يي | |
| ۱۱۴ | کچاو خپل زوي ته وويل دکافر زو | ۲۰۹ |
| ۱۱۵ | کچا وخپل حيوان ته وويل | ۲۰۹ |
| ۱۱۶ | زه خو پر ابلس باندي لعنت نه وايم | ۲۱۱ |
| ۱۱۷ | کچا بت جوړ کړي | ۲۱۱ |
| ۱۱۸ | کچا ويوي ښځي ته وويل ته مرتد ده سه | ۲۱۲ |
| ۱۱۹ | و مسلمان ته ارتداد ورښودل | ۲۱۴ |
| ۱۲۰ | زما پير چه هرڅه وايي زه هغه کوم | ۲۲۱ |
| ۱۲۱ | په اذان پوري خندل يا مسخرى کول | ۲۲۲ |
| ۱۲۲ | دکفارو او مجوسيانو په شان کالي اغوستل | ۲۲۴ |
| ۱۲۳ | په غضب سره چاته ويل | ۲۳۲ |
| ۱۲۴ | د نوروز ورځ | ۲۳۵ |
| ۱۲۵ | ماته حرام جايز دي | ۲۴۰ |
| ۱۲۶ | چه شراب خوړل | ۲۴۲ |
| ۱۲۷ | که څوك د محرماتو څخه انکارسي | ۲۴۵ |
| ۱۲۸ | وفقيرته حرام مال ورکول | ۲۵۷ |
| ۱۲۹ | که چا ويل دشرابو | ۲۶۱ |

| | | |
|---|---|---|
| | | |
| ۱۳۰ | د ښځي سره په حيض کښي نزديکت کول | ۲۶۵ |
| ۱۳۱ | خوړل سربيره پر مرتيا | ۲۶۹ |
| ۱۳۲ | ولى زکات نه ورکوي | ۲۷۱ |
| ۱۳۳ | خداى خبر دى چه تراوسه دى په دوعا کي يادوم | ۲۷۴ |
| ۱۳۴ | په خداى او ستا د پښو خاورو دى زما قسم وى | ۲۷۵ |
| ۱۳۵ | زمادى په خپل ژوند قسم وى | ۲۷۵ |
| ۱۳۶ | زما خداى لاپه ماندى خبر | ۲۷۸ |
| ۱۳۷ | و پا چاته ته سجده کول | ۲۸۵ |
| ۱۳۸ | مځکه موچول | ۲۸۸ |
| ۱۳۹ | وهر ظالم ته سجده کول | ۲۸۷ |
| ۱۴۰ | لاسونه موچول | ۲۸۸ |
| ۱۴۱ | کچاوپاچاته وويل ته زموږ دزماني عادل يي | ۲۹۲ |
| ۱۴۲ | آخير به کافر کيږم | ۲۹۶ |
| ۱۴۳ | که ديوي ښځي ميره بندى وو | ۲۹۶ |

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم

## د ژباړن سريزه

نَحْمَدُهُ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْم (امابعد) دا ښکاره او يقيني خبره ده چه د انسان د خلقت او پيدا ينښت څخه اصلي مقصد هم دادی. چه دی به د الله ﷻ عبادت او بندگي کوي چه په دغه اړوند د سورة الذاريات دغه آيت شريف روښانه دليل دي چه فرمايي: ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الجِنَّ وَالانْسَ الاَّ لِيَعْبُدُوْن ﴾ مانه دی پيدا کړي پيريان او انسانان مگر ددی لپاره مي پيدا کړيدي چه زما عبادت وکړي. انسان هغه وخت دکمال و مرتبي ته رسيږي چه دالله ﷻ په عبادت او بندگي کښي دالله پاك د حکمونو مطابق په صحيح معنی سره د ځانه څخه تابع بنده جوړکي، اود الله ﷻ وهر حکم ته په صحيح توگه سره د اطاعت غاړه کښيږدي،

همدارنگه په دی کښي هيڅ شك نسته چه انسان يو معززه او مکرم مخلوق دی، لکه چه الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ وَ حَمَلْنَا هُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ﴾ الاية سورة الاسراء، آيت نمبر ٧٠، انسان په مځکه کښي د نورو مخلوقاتو په نسبت سره په جسمي أو معنوي لحاظ د لوړو صفتونو درلودنکي دي اود

ډيرو ځانګړتياوو ښښتن دي، چه په دغه ټولو ځانګړتيا وو او صفتونو کښي يي بيا عقل دپام وړ امتيازي صفت دي چه الله تعالی جلّ پرده باندي دهغه پيرزوينه کړيده،
اما بياهم انسان دعقل او نورو خصوصياتو په درلودلو سره نشي کولاي چه دالله پاك د بندګي او عبادت اقسام، او همدارنګه د عبادت کولو کيفيت او طريقه وپيژني اوبياپه هماغه طريقه باندي د خپل خالق په وړاندي په عبادت کولو سره مشغوله سي، اوهغه عبادت يي دالله تعالی جلّ د رضا د حاصلولو سبب وګرځي، باالاخره و جنتو ته يي ننوتل وړپه برخه سي اودهغو نعمتو وعده چه خدايتعالی جلّ دخپلو نيکو او پرهيزګاره بندګانو سره کړيده هغه پوره کړي. پس دهمدغه ضرورت له مخي ښخه الله پاك انبياء او رسولان ورته راوليږل وخپلو بندګانو ته ترڅو د وحي په رڼا کښي و انسانانو ته لارښونه وکړي، اوهم دوي په دنيا کښي د هدايت د حاصلولو په برخه کښي د يوازي مرجع په توګه سره وپيژندل سي.
داسلامي امت ستر لارښود محمد رسول الله ﷺ په ټولو انبياوو کښي اخيرنی او غوره پيغمبر دی اوکوم کتاب چه پر ده باندي نازل سويدي هغه د ټولو اسماني کتابونو په نسبت جامع او کامل کتاب دي،

پس په دغه کامل او مکمل شریعت کښي خلقوته ددی موقع نده ورکړه سوی چه دوي په شرعی امورو کښي د شرعی اصل څخه پرته، د عقل او فاسد قیاس څخه کار واخلي، خو متاسفانه نن ورځ مسلمانان دومره بي باکه او بي پروا سویدي څه چي یي زړه غواړي هغه کوي څه چه یي پر خوله ورځي هغه وايي، په ځان نه يي خبر چه خدای مکړه مرتکب د کفراوالحاد گرځیدلی وي او خپل ټول نیك اعمال یي حبطه او بیکاره او د میانځه څخه تللي وي یایو زیات شمیر خلق د وسیلي او واسطي په اړوند په دی عقیده دي، چه الله پاك ﷻ ته د ذواتو فاضله وو، اوښو خلقو واسطه کول يو ضروري اولازمي امر دي، دوي په دي برخه کښي د خپل ناقص عقل او فاسدو ناکاره قیاس څخه کار اخلي او داسي وايي: دلته په دنیا کښي د حکومتونو تعامل او طرزالعمل داسي دی، چي څه وخت والیانو او وزیرانو او نورو دولتي مشرانو او چارواکوته غوښتن لیك یا عریضی د واسطو د سفارش څخه پرته لاس پلاس وهغه اصلي مقام ته یي نسي ورکولای، نودا بیا کله داسي کیدای سي چه هغه د هیڅ مسئول مقام تر نظر لاندي دي تیره نسي. که داسي وي نو د عارض په گټه کښي کوم مثبت او اغیزمن اجرائت صورت نسي موندلای،

دغه راز دوي وايي: کله چه ځوك واسطه ولري، نو صدراعظم او رئيس جمهور او پاچا ته د واليانو يا وزيرانو په واسطه سره خپله عريضه او غوښتن ليك ور وړاندي کړي نو ذکر سوي مشران يا دولتي مسئولين بياد خپلو واليانو او وزيرانو په خاطر سره ددغه سړي و عريضي يا غوښتن ليك ته نسبتاً زيات اهميت ورکوي،اوکه يي شخص پخپله ورووړي بيا ځوك چندان اهميت نه ورکوي،

دوي د خپلو خودساخته وو دعوو او مقدمو په تعقيب وايي: عوام الناس يعني دغه عادي خلق په دی خاطر چه گناه کاران دي نو د حاجاتو دپوره کولو او د خپلو ستونزو او مشکلاتو درفع کولو په برخه کښي ورته په کاردي چه ذوات افاضل يعني اولياء الله ﷺ او نيك بندگان واسطه کړي چه دالله پاكﷻ و دربارته يي غوښتنليکونه وړانديکړي، دوي بيا دهمدغه اټکل او مزخرف اعتقاد پر بنياد د اولياؤ کرامو او ښو بندگانو و قبرو او زيارتو ته ورځي او هلته د غير مشروع اعمالو او اقوالو او خبرو مرتکب گرځي، داسي خبري ځيني وکړه سي چه په ځان نه وي خبر اوکافر سوي وي او نيك اعمال يي حبطه او د ميانه ځخه تللي وي،

ماته دعلامه بدر الرشيد الرشيدي يو کتاب پنامه د﴿الفاظ الکفر﴾

چه شیخ ملا علی قاري صاحب ورباندي شرح کړي وه د جناب ملا صالح محمد اخند صاحب دخوا په لاس راغلي چه د مطالعه کولو څخه وروسته زما ډیر خوښ سو، اودا احساس راته پیدا سو چه زموږ ټول پښتانه د خپلي ژبي په سبب په دغه ناعلاجه مرض اخته دي، خو ځیني داسي مریضان هم دی چه سره د مرضه بیا هم ځان روغ رمټ او جوړ تیار بولي، نو همدا سبب وو چه ما ددی کتاب د ژباړلو دپاره د همت ملاوتړل اوپه ټول کتاب کښي مي دا تلاښ کړیدي چه د سوچه قندهاري پښتو الفاظ وکاروم څو هرعام وخاص ورڅخه په ښه توګه مستفید سي، دا خبره ښه د یادوني وړده چه که داکتاب په طلاء سره ولیکل سي اوپه اسلامي ټولنه کښي د عمل او عقیدي د اصلاح په باب د استفادي وړ وګرځي که ویونکي زما ددی کتاب د ویلو په وخت کښي خپله کینه او تعصب شاته وغورځوي، نو حتماً به ورته زما خبره مبالغه نه بلکي حق او حقیقت ثابت او معلوم شی، ډیرو درنو او قدرمنو لوستونکو له هرڅه مخکښي غواړم چه تاسوته ددی کتاب مصنف در وپیژنم مخکي له دي څخه چه د کتاب په ژباړلو پیل وکړم،

## راسي چه د الفاظ الکفر د کتاب مصنف وپيژنو

موفق نه سولم چه داسي کتاب پلاس راسي چه په هغه سره ددی نادره کتاب د مصنف پر ژوند باندي وکړای سم يوه اوږده شرحه وليکم، همدغه کم وسي ودغه ته اړ کړم چه دده په دغومره لنډه پيژندنه باندي اکتفاء وکړم،

## دده نوم او تخلص او نسب او مذهب يی

دده پوره او مکمل نوم محمد بن اسماعيل بن محمود دي، تخلص يي ﴿بدر الرشيد﴾ دي، د رشيدي ښارګوټي اوسيدونکی دي، اود حنيفي مذهب درلودنکي دي په کال ﴿ ٧٦٨ ﴾ هجري کښي وفات سويدي،

علامه بدر الرشيد د ډيرو ښو صفاتو درلودنکي وو، هرچابه دده ستاينه او توصيف کاوه،ځينو دی، شيخ ﴿امام﴾ علامة، باله،حاجي خليفه هم په خپل کتاب کښي دده ډير صفت کړيدي، او دده نوم يي الامام محمد بن اسماعيل بن محمود المعروف په بدرالرشيد الحنفي ياد کړيدي،

او شيخ عبدالله مرداد ابو الخير هم دی په امام سره توصيف کړيدي، او زرکلی هم په خپله ترجمه کښي دی د امام پنامه

سره یاد کړيدي اوهم يي ويلي دي چه دی يو کتاب لري په نامه
د ﴿ الفاظ الکفر ﴾

او عمر فاضل هم دده ډيره ستاينه کړيده، اودده نوم يي محمد
بن اسماعيل بن محمود ياد کړيدي اوهم عمر فاضل ويلي دي
دی د ښه تصانيفو درلودنکي دي چه ښه د هغو څخه يي دغه
کتاب الفاظ الکفر دي،

يو خارجي ژباړونکي ﴿ کارل بروکلمان﴾ هم دده د کتاب الفاظ
الکفر ترجمه کړيده، ﴿ تاريخ الادب العربي ﴾

دالازهرية په فهرست کښي دده د کتاب﴿ الفاظ الکفر﴾ يادونه
سويده:

په واقع کښي ښکاره خبره خو داده، هرڅومره چه ليکوالانو د
علامة بدر الرشيد په باره کښي ويلي او ليکلي دي داټوله
لږدي په دومره لږه ستاينه او صفت سره دی نه سو پيژندلای،
نو ښه به داوي چه دده وکتاب الفاظ الکفر ته مراجعه وکړو څو
دی ښه تراوپيژنو او دده د علميت او پوهي څخه باخبره سو
دده د پيژندني سره به ډير نور علماء او فضلاء هم وپيژنو، ددی
کتاب په لوستلو او مطالعه کولو سره به انشاء الله ډير خلق د
شيطان د لمسون او وسوسو څخه خلاص سي بيا به هره خبره
په ډير احتياط او تامل سره کوو اود شيطان ده رسی څخه به
خلاصون پيداکړو، دشر د افشاء کولو او د محارمو او قبايحو

د خطر څخه به وساتل سو، او دا کوچنی کتاب به دده د ژوندون د سمون یوه روښانه هنداره سي او همدغه کتاب به په اینده کښي انشاء الله دده مانع او راګرځونکي د ډیرو بدیو څخه وګرځي،

علامه بدر الرشید پر اسلامي ټولنه باندي ډیر شفیق او مهربانه شخصیت وو، تل په دی تلاښ کښي وو چه اسلامي ټولنه ددنیا او آخیرت د مهالکو څخه وساتي چاچي به ودین حنیف ته توجه نکوله. له هرڅه مخکښي به یي وهغه ته په ډیره نرمه او خوږه لهجه سره وعظ او نصیحت کاوه هغه به یي دغي لاري ته چه ددنیا او آخیرت خیر پکښي دي راګرځاوه او ورته ویل به یي ستا په دغه لاره کښي ددنیا او آخیرت صلاح او ښیګڼه ده،

ده به ویل: زه ډیر پر مسلمانانو باندي ددی څخه بیریږم چه دوي ددی دنیا د ژوند په لذاتو او زخاریفواخته سي، او متابعت د نفس او هوا وشیطان وکړي، ده به ویل له هر څه ضروري مسلمان ته داده چه ددنیا په کارو لږ او د آخیرت په کارو ډیر ځان مشغول وساتي، چه همدا اخیري مقصد او هدف دي او ددین په کارو کښي دالله ﷻ رضاء ده، زموږ ددي دنیا د ژوند غایه اومقصد هم دادی چه د خدای د رضاء لپاره کار وکړو،

لوستونکي او مطالعه کونکي ددي کتاب د ځانه سره دا تعهد او اقرار کولای سي چه زه د حق په بیانولو باید د هیچا څخه ونه بیریږم، اود خداي په لار کښي چه هر غم او مصیبت راورسیږي دهغه باید هیڅ باك ونکړم اود خپل دین ټولي چاري خاص دپاره د الله ﷻ وګرځوم په هر څه کښي د خدایﷻ رضاء د خپلو پر رضاء باندي مقدمه وګڼي، ددي کتاب په ویلو سره به د ښه قانع کونکو دلایلو او ښه جرئت او صراحت خاوند سي، اوپه دی باندي به خبر سي چه نن صبا زموږ اسلامي ټولنه په څه بد حالت کښي لویدلي ده، او څنګه بد کارونه کوي، حتی و ځانته په خبرو کولو کښي د کفر اجازه ورکوي اود خپل عمر ټول نیك عملونه حبطه او بیکاره کړي اودی په ځان هم خبر نه وي چه زه مسلمان یم که کافر؟

دده ددی کتاب څخه ﴿ وَ اللّٰهُ اَعۡلَمُ ﴾ داسي معلومیږي چه دی ډیر متقي زاهد او پرهیزګاره شخصیت وو، هیڅ یوه خبره یي ددین په کارو کښي بیله علم او دلیل څخه نکوله، دچا څخه چه به د کفر یوه خبره وسول دستي به یي فوراً هغه نه خبراوه که به وده ته هغه وخت شرعي حکم نه وو ورمعلوم په صحیح طریقه سره ده به ویل زه یي اوس ځکه نه خبروم چه اوس یي ژړولای نه سم، اوکه یي بحث او مناقشه راسره شروع کړل او زما سره یي قانع کونکي جواب نه وي نو دازما دپاره عیب او شرم دي، کله

چه زما سره کتابونه او فتاواوی جمع سولي او ډېرو مجتهدينو اقوال راته معلوم سول او د دوی تر منځ اختلافات راته معلوم سول، او خدايتعالیﷻ ټول هغه شيان راته برابر او مهيا کړل کوم چه زما ورته اړتيا وه. د دلايلو او براهينو څخه او کولای مي سوای چه طرف مقابل وژړوم او په دلايلو او اقاويلو د مجتهيدينو يي خبر کړم او قناعت ورکړم، بيا ورته ويلاي سم چه تا د کفر خبره وکړل،

دده د خبرو څخه دا هم راته معلوميږي چه دی يو عادی او ساده سړی نه وو، دده وخبرو ته به ډېر خلق صف صف کښينستل او دده بيا نيي به يي اوريدلي دده ددرس په مجالسو کښي به لوي لوي عالمان او د لوړو رتبو خاوندان او مفتيان کښينستل،

اوس به دده د کتاب شرح کونکي در وپيژنم، چه دده پيژندنه ما پر څو برخو باندي تقسيم کړيده،

په اول فصل کښي - دده شخصي ژوند او دده نوم او نسب په دوهم فصل کښي - دده زيږيدنه او ځواني،

## اول فصل

د شارح شخصي ژوند اودده نوم او نسب:

دده نوم الامام العلامة موسوم په مجدد سره، شيخ ملا علی بن سلطان محمد القاري الهروي دي، ثم المکي الحنفي دي، چه مشهور و معروف په ملا علی قاري سره وو، کنيه يي ابو حسن وو، او لقب يي نورالدين وو، ځيني مترجمين او څيړونکي وايي: دده اصلی نوم علی بن سلطان بن محمد دي، او ځيني وايي: نوم يي علی بن محمد بن سلطان دي، ليکن شيخ عبدالله بن مرداد دغه رده وي په دغه خبره سره چه دده نوم علی بن سلطان محمد دي، ښکاره خبره ده چه مجموعه د علم د عجميانو پر اصلاح د دوو لفظو څخه مرکبه او جوړه وي لکه چه ددوي ټولو نومونه داسي مرکب سويدي، لکه محمد صادق او محمد اسعد سره ددي، چه دده پلار دوخت د پاچاهانو څخه وو، خو بيا هم ډيرو څيړونکو دده وقول ته مراجعه نده کړي،

خو اکثره مترجمين هم غالباً پر دغه دي چه دده اصلي نوم علی بن سلطان محمد دی، انشاء الله دابه هم حق اورشتياوي، په دي دليل چه شيخ علی قاري په خپلو ډيرو تصنيفاتو کښي

خپل ځان پنامه د علی بن سلطان محمد معرفي کړيدي،
﴿وَ اللهُ اَعلَمْ﴾
اودی په قاری سره هم مشهوره وو، ځکه دی د قرائت معلم وو او لويانو او کوچنيانو ته يي د قرائت درس او تعليم ورکاوه، په کوچنيوالي کي يي په خپل کلي او وطن کښې درس ووايه، وروسته يي د وطن پرلويو مشايخو باندي وخپل تعليم او درس ته ادامه ورکړل، حتی د بلد الامين د مشهورو قاريانو څخه سو او هلته يي د قرآن و تدريس اودکتابوو تاليف ته ادامه ورکړل ترڅو د علم القرائت د امامانو څخه يو تکړه امام او قاري ورڅخه جوړ سو، همدغه سبب دي چه په قاری سره مشهوره سو ﴿هروی﴾ ځکه ورته وايي چه ده د هرات په ښار کښې سترگي دی نړي ته پرانستلي دي په هغه وخت کښې هرات د خراسان د مشهوروښارو څخه وو چه اوس د افغانستان د غربي ولايتو څخه يو ولايت دي،

## دملا علی قاري زيږيدنه او ځواني

شيخ علی قاري په هرات کښې زيږيدلي او هلته ځوان سويدي، هر کتاب چه به پلاس ورتلي هغه به يي مطالعه کاوه، ماهم دده د ژوند په اړه ډير کتابونه مطالعه کړل، خو دده د

زیږیدني تاریخ په لاس نه راغلي غیرله هغو زړو ترجمو څخه یاد نوي عصر خلق چه دده ژوند یي درس کړي او مطالعه کړیدي، په ځینو کتابو کښي مي ولیدل چه لیکلي وه چه دده زیږیدنه به تقریباً په پنځم عقد کښي دلسم قرن هجري وي، ده خپل تعلیمي ژوند د خپلي زیږیدني د ښار څخه شروع کړي، دکتور احمد عبدالرزاق الکبیسي هم دغسي اشاره کړیده، چه دی په هرات کي پیدا او هلته ځوان سو، دهغه ځاي د مشهورو علماؤ څخه یي اساسي علوم زده کړل په دغه وخت او زمان کښي هرات د علم مرکز او ځانگو وه،
موږ ته داسي کتابونه پلاس نه راغلل چه موږ دده کور او ژوند او نور خاندان او قبیلي په اړه ورڅخه معلومات حاصل کړو، دده د استاذانو سره هم نه سوم ملاقي کوم چه ده په هرات کښي ورباندي درس ویلي وو، غیر له یوي ښځینه استاذي سره چه جناب ملا علی قاري صاحب ورباندي د اولي پلا دپاره د قرآن شریف درس ویلي وو، اوس به په راتلونکي صفحو کښي دده دعلم اودده د سفر په باره کښي ومکي ته او هلته دعلم د حصول په باره کښي تاسوته معلومات درکړو،

## د قاري صاحب علمي ژوند

دده د علم د حاصلولو طلب او دده سفر د علم دپاره او دده قدر او منزلت په علم کي مخکښي مو درته وويل، چه شيخ علي قاري اساسي علوم او ابتدايي علوم د خپل ولادت او خال پوځو او ځواني په ځاي هرات کي حاصل کړيدي،

په دی کښئ د ټولو اتفاق دي بيله اختلاف څخه چه شيخ علي قاري قرآن ووايه او حفظ يي کړي او تجويد يي وکړي او ټول ابتدايي علوم يي د خپل ښار د علماؤ څخه مخکي تر سفر حاصل کړل.

شيخ محمد عبدالحليم بن عبدالرحيم وايي: دده درسي علوم او نور مروجه علوم په هرات کښي د وخت د جيدو علماؤ څخه حاصل کړل. په حقيقت کښي شيخ علیؒ په خپله دانده معلومه کړي چه دده په هرات کښي د کومو علماؤ څخه علم وتعليم حاصل کړيدي. غيرله ﴿ شم العوارض في ذم الروافض ﴾ کښي چه دده په خپله ويلي دي چه زما استاذ په علم قرائت کښي ﴿ مولانا معين الدين بن حافظ زين الدين ﴾ دي خو نور تفاصيل او سيرت د خپل استاذ يي نه دی ذکر کړي، په همدي سبب مو دده د ژوندلومړی مرحله همداسي مجهوله پرينبودل خو داهم ويلاي سو چه همدا شهرت او ترقي په لاره د علم

کښي دده د لومړي مرحلي د تعليم اثار دي چه دده د ژوند په مستقبل کښي دومره ښه تاثير اچولي دي اودده آينده يي ديوه ځليدونکي مشعل په شاني ځلولي ده، داسي معلوميږي چه د قاري په ژوند کښي دغه دوره ډيره مهمه دوره ده، دده د علمي لوړوالي څخه معلوميږي چه ده د علم ابتداء په ښه جديت سره کړيده، دده د مستقل او ازاد فکر ميوه او ثمره د ډيرو علمي کتابو تصنيف او تاليف دي چه دده ژوند يي نور هم مثمره او خوندوره گرځولي دی، اوله هره پلوه يي تبرك او خو ښي ورپه برخه کړيده،

## دده سفر کول ومکي ته د علم او زده کړي لپاره

کله چه شيخ علی قاري صاحب ابتدايي تعليمات په ښهٔ توگه په خپل وطن هرات کښي د وطن دډيرو جيدو علماؤ څخه حاصل کړل، وروسته ورته دا فکر پيدا سو چه مکي ته د علم د حصول دپاره ولاړ سي او هلته په مکه کښي واوسيږي، که د خدايتعالیﷻ خوښه وي نور باقي ژوند به د مکي په څنگ کښي تيره ومه،
ده به هميشه د خدایﷻ حمد او ثناء ويله، چه ماته خدايتعالیﷻ ډير نعمتونه راکړيدي چه يويي زما هجرت کول دي ودي پاکي او مطهره خاوري ته او بيايي زه د خپلي بيتي

مجاور او همسایه وګرځولم، تل به يي دا ويله: الحمد الله چه ماته خدايتعالی ﷻ دا توفيق راکړي چه دهغه بدعت د سراي څخه مي ددنيا د مځکي د سر ومبارکي ټوټي ته هجرت وکړي داسي ټوټه د مځکي چه هغه دوحي د نزول او د نبوت د ظهور ځاي دي، اللهي ته په دی مبارکه مځکه کښي ثبات او استقامت زما په برخه کړي، کنه زه هيڅ نسمه کولاي ترڅو ته زما په برخه استقامت او ثابت قدمي ونکړي، څو خدايتعالیﷻ دده دغه دوعاء قبوله کړل اوده ته يي د خپلي بيتي په څنګ کښي کور ورکړي، او د علم او پوهي دروازيي ورباندي خلاصي کړلي. اود نافعه اعمالو د حصول توفيق يي ورپه برخه کړي د ډيرو جيدو علماؤ ملګرتيا يي نصيب سول اود هر يوه علم څخه يي خپله ښه برخه تر لاسه کړل. په همدي سبب د عربو او عجمو د علماؤ څخه يي علم حاصل کړيدی،
داسي عالم ورڅخه جوړ سو چه ډير لوي لوي علماؤ به دده و ځيګرته د اشاري ګوته نيوله، خدايتعالیﷻ دده سينه د علم دپاره پراخه کړله، خدايتعالیﷻ له هره جانبه خير دده په نصيب کړی، د مکی شريفيَ د علماؤ ملګرتيا د ډير وخت لپاره دده په نصيب سوله، دده و علوموشرعي ووته ډير رغبت او مينه ود، ډير کتابونه يي تصنيف کړل، په حصول د علم

کښې ډېر حريص وو او د تحصيل د علم څخه هيڅ نه ستړي کيدي اونه يي علمي تنده ماتيدله،
وايي دی هيڅکله چا بيله کتابه نه دي ليدلي، که به کتاب نه وو ورسره نو د يوه استاذ ومخته به ديوه وړي او مولع په شاني ناست وو چه کله به دهغه دخولي څخه يوه مسئله راووزي اودی هغه د خپل دماغ په خزانو کښې ذخيره کړي، د ناستي ځاي يي علمي اسلامي کتابخاني وي، د هغو کتابخانو څخه يي ډير نا فع او فايده مند علوم په خپله مغزو کښې ځاي او ياداشت کړل، شيخ قاري ديوه عجب او نادره ذکاوت او ځيراکت درلودنکي وو، سره د علمي شوق يي نور مواهب او شوقونه هم درلودل، خو موږ صرف دلته دده پر علمي اړخ باندي بحث وکړي، اودده پر دغه اړخ باندي مو روښنايي واچوله، که نه دی سره د علميت ډير زاهد او متقی او پرهيزگاره وو او د خپل لاس داجوري او مزدوری څخه يي خوراك كاود،

## دده علمي مقام

د شيخ علی قاري صاحب د ژوند او حالاتو ولوستونکو ته به اوس ښه روښانه سوي وي چه دده علمي مستویٰ او درجه وخومره لوړو مراحلو ته رسيدلي وه اوده په اسلامي کتابخانو

کښې و څومره ډول ډول علومو او مختلفو معارفو ته د حصول لار پیداکړي وه چه د خپلې زمانې د اولې درجې د عالمانو په صف کښې یې درولی وو، په رشتیا هم ده رحمة الله علیه تر هغه وخته ددرس او تعلیم و حصول ته ادامه ورکړل تر څو په ټوله «بلد الامین» کښې کامیابه او بریالی عالم ورڅخه جوړ سو، څوچه د لوړ مقام او مرتبې خاوند سو، د خپل عصراوزمان دعلمیت واخرني لوړي زینې ته یې ځان ورساوه، دحقیقي علماؤیوځلانده ستوری اونمونه وګرځیدله، خدایتعالیﷻ په علم کښې داسې عالیشانه مقام ورپه برخه کړي، سره د علم او پوهې ددغومره ځیرکتیا او تیزفهمي خاوند هم وو، ترڅو د خپل دغه صفت په برکت سره یې هر ډول علوم حاصل کړل، داسې علم نسته چه ده دی دهغه علم دروازه نه وی ټکولي. اود هغه څخه یې د ځان دپاره یوه حصه نه وي حاصله کړي، دده فضیلت او ښه والي دده د ډیرو تصانیفو څخه ښکاره اوهویدادي دومره اندازه موږ ته شیخ عبدالله مرداد ویلي وه په خپل کتاب « الجامع للعلوم العقلیه والنقلیه » چه د علومو څخه د قرآن او سنت نبوي اخسته سویدي،دنورمعلومات دپاره« المختصر »وګوري چه « نشرالنور»

چاپ کړيدي، په صفحه ۳۶۶، کښي يي مطالعه کړي، همدارنگه «ازهارالبستان» وگوري په طبقات الاعيان کښي د عبدالستار بن عبدالوهاب د هلوي ص ۳۸، دا نسخه تر اوسه لاچاپ سوي نده، د مسجد نبوي شريف په کتابخانه کښي ساتل سوي او پرته ده په نمبر ۱۴\۹۲۰، کښي،

## دده شاگردان او استاذان

له هرڅه مخکښي به د شيخ علي قاري صاحب استاذان درته معرفي کړم، شيخ علي قاري صاحب په بيت الحرام کښي تر ځلوېښت کاله ډير عمر تير کړی، دغه وخت يي ټوله په درس او په تحصيل کښي د علم تير کړيدی په دغه زمانه کښي ډير علماء ددنيا د گوټ گوټ څخه ومکي ته راتلل ځکه داد مؤمنانو او مسلمانانو دراحت او دزړه د سکون ښاردی د هر فج عميق څخه هر کال ورته خلق راځي چه په دغه خلقو کښي به ډير جيد او ښه عالمان هم وه، په دغو علماؤ کښي ځيني داسي کسان هم وه چه د څه وقت لپاره به په مکه کښي پاته کيدل، د علم او پوهي تږو به ددغه معارف د چينو څخه خپله تنده ماتول هريوه به د خپل قدرت او کفايت په اندازه ورڅخه اخستنه کوله،

انشاء الله زه به د خپلو استاذانو د شیخ علی قاري معرفت او پیژندنه تاسوته وړاندي کړم، دهغو مصادرو او مراجعو تر روښنایي لاندي چه زما په لاس کښي دي، زه به د هر یوه پر ژوند اوپر مقام د علمیت ددوي روښنایي واچوم،

اول: دده د استاذانو څخه یوهم علامة شهاب الدین ابو العباس، احمد بن محمد بن محمد بن علی بن حجر الوائیلي السعدي الانصاري الهیتمي المصري ثم المکي دي په کال ۹۰۹، هجري قمري کښي په یوه علمي کورني کښي سترګي ودي دنیا ته پرانستلي قرآن یي حفظ کړي اسلامي علوم یي حاصل او درس کړل،په شافعي فقه کښي روښانه کامیابي ور په برخه سوله، ښه فایده مند کتابونه یي تصنیف کړل، وروسته ومکی ته ولاړي هلته مقیم سو، هلته یي هم ډیر ښه فایده مند او قیمتي کتابونه تصنیف کړل، زاهده په دنیا کښي وو ددنیا څخه نه مستفید کیدي مګر ډیر لږ، همیشه یي خلق په ښو او نیکو اعمالو سره امر کول او د بدو څخه یي منع کول، دی ډیروتصنیفاتودرلودنکی دی،چه دهغو څخه یي دغه کتابونه مشهوره دي،

۱- ﴿الصواعق المحرقه﴾ دغه کتاب رد دی پر کونکو د بدعت اوپر گمراهانو او زناديقه ووباندي،
۲- ﴿الزواجر﴾ په باره کښي د ځان ساتلو د کبايرو څخه،
۳- ﴿ تحفة المحتاج ﴾ شرح پر منهاج النوويي،
په مشهورو اقوالو په کال ﴿ ۹۷۳ ﴾ هجري کښي وفات سويدي، دده څخه شيخ علی قاري صاحب ډيره اخستنه د علم کړيده، اوهم يي دده پر علميت او ژوند باندي خاص تاثيرات اچولي دي، لکه څنگه چه دی په خپله دده داسي توصيف کوي ﴿ شيخنا العالم العلامة ﴾ ﴿ البحر الفهامة ﴾ شيخ الاسلام ومفتی الانام، صاحب التصانيف الکثيره، مولانا و سيد ناوسندنا الشيخ شهاب الدين ابن الحجر المکي، قدرمنو لوستونکو په دی هم بايد ځان پوه کړو چه دی ولی په حجر سره مشهوره سو، دده نيکه وو چه هيڅکله يي خبري نه کولی آلا په وقت کښي د سخت ضرورت خلقو به ورته ﴿ حجر ﴾ يعني ډبره ويل، ځکه دی په ابن حجر سره مشهوره سو، او﴿الهيتمی﴾ ځکه ورته وايي چه دی ددغه ځاي اوسيدونکی وو، الهيتم يوکوچنی ښارگوټي دي په غرب کښي دمصر،دښه معلومات دپاره﴿شذرات ابن الذهب﴾دابن العماد وگوري، ج ۸ ص ۱۴۶،

دوهم استاذ د جناب شيخ على قاري ﴿ على متقي ﴾ دي، دده اصلي او مکمل نوم او شهرت داسي دی، علامة علاء الدين بن عبدالملك بن حسام الدين ابن قاضي خان الهندي دی، ثم المدني والمکي دی. مشهوره په متقي سره دی، دهندوستان د دکن ولايت په برهانپور کلي کښي زيږيدلی دي، لومړي زده کړي يي د خپل وطن د علماؤ او محدثينو څخه وکړل، په زهد او تقویٰ او اصلاح سره مشهوره سو تر څو خلقو د متقي په نامه سره مشهوره کړي. د وخت د غټو چارواکو په نزد دده ډير قدر او عزت وو. دده مناقب او سيرت په جلا کتاب کښي ليکل سويدی. دی په احاديثو کښي ډير خوندور او نافع تصنيفات لري، ځيني وايي چه تقريباً سل کتابه ده تصنيف کړيدي چه مشهوره د هغو کتابو څخه دادي،

۱- ﴿ کنزالعمال ﴾ في سنن الاقوال والافعال

۲- ﴿ المواهب العلمية ﴾ دکتاب عنوان دی جمع کونکی د احکام القرآني او حديثو دی،

۳- ﴿ جوامع الکلم ﴾ في المواعظ والحکم،

په کال ۹۷۵، هجري کښي وفات سويدی، شيخ على قاری صاحب دی هم په مقدمه کښي دخپل کتاب ﴿ مرقات المفاتيح﴾ د هغو کسانو څخه بللی دی چه ده ورباندي درس ويلی دی، په خپل کتاب کښي په داسي الفاظو سره ليکلي

دي، ﴿ قرائت هذا الکتاب المعظم علی شیخ الحرم المکرم نفعنا الله بهم وببرکات علومهم ومنهم العالم الفاضل الکامل العارف بالله الولی مولانا الشیخ علی المتقي ﴿ مرقاة المفاتیح ﴾ ج ۱ ص ۲، ترجمه: مادغه مبارك او معظم کتاب د بیت الحرام پر مشایخو ویلی دی خدایتعالیﷻ دي دده دعلم برکت او نفع ومونږ ته ورسوي چه یو د هغو علماؤ او مشایخو څخه عالم اوفاضل او عارف بالله مولانا شیخ علی المتقی دی،

دریم استاذ . او شیخ چه علی قاري ورباندي درس ویلی دی ﴿ عطیه السلمي ﴾ دي، دده پوره او کامل نوم ﴿ علامة عطیة بن حسن السلمي ﴾ دیمکي شافعي دی دامام شافعي په ژوند کښي د مذهب ریاست وده ته وسپارل سو، خلقو دده په علمیت او فضیلت باندي شاهدي ورکوله، د سلیمانیه په مدرسو کښي مدرس او استاذ وو اوهم د فتوی ورکولو چاري دده پر غاړه وي، ده پر قرآن باندي تفسیر کړیدی، په دري اجزاؤو کښي، په کال ۹۸۲، هجري کښي وفات سو، شیخ علی قاري په خپلو تصانیفو کښي دی په خپلو استاذانو کښي شمیرلي دی، دی وایي زمونږ د عصر او زمان جید او ښه استاذ او عالم مولانا شیخ عطیه السلمي وو، دی د شیخ الاسلام ابي الحسن البکري د شاګردانو څخه وو،

خاوړم استاذ د شیخ علی قاري صاحب جناب «شهاب الدين احمد العباسي» دی، دده پوره نوم « العلامة شهاب الدين احمد بن بدرالدين العباسي الشافعي المصري ثم الهندي» دی، په کال ۹۰۲ هجري کې زیږیدلی دی دی د پوره نبوغ د جیدو اوفاضلو علماؤ څخه وو په زهد او ورع وتقوی کښې د ښه شهرت او لوړ احترام خاوند وو. هیڅ یو کار یې د قرآن او حدیث پر خلاف نه کاوه. ځینې څیړونکي د مترجمین د یې شیخ علی قاري دده څخه په مکه مکرمه کښې زده کړه کړیده. دده د تالیفاتو او تصانیفو څخه دغه کتابونه دي.

اول- تفسیر قرآن الکریم

دوهم- شرح مختصر الانوار. چه مسمي په «نور الابصار» سره ده په فقه کښې

دریم- رسالة في علم اللغة

په کال ۹۹۲، هجري کښې د هندوستان د احمد اباد په ښار کښې وفات سو،

پنځم- استاذ د شیخ علی قاری صاحب «السید زکریا الحسني» وو،

هغه علامة محدث مسند زكريا الحسني وو، دی د شاگردانو څخه د شيخ اسماعيل بن عبدالله الشرواني وو، محمد عبد الحليم بن عبدالرحيم الچشتی النعماني وايي: سيد زكريا دلوی مجد او شرف خاوند وو، د وخت ډير خلق د تبرك دپاره وده ته ورتله، دخپل عصر يو نادر او خوږ مجلسي وو، د خلقو څخه ليری او هيچاته يي تكليف او زحمت نه وركاوه، اصلي وطن يي هندوستان وو، خوپه يمن كښي لوي سوي او ځوان سوي وو، څه وخت چه مكی ته راغلی مكه يي خپل د اقامت او استوگني ځاي وگرځاوه، دننه د مكي په حرم كښي معتكف سو خلقو ته يي د احاديثو درس وايه، اكثره اهل العجم به د تبرك دپاره دده ومجلس او زيارت ته راتله سره ددي چه ډير سپين ږيری او ضعيفه وو، دده كور په جبل ابي قبيس كښي وو، دهغه ځايه څخه به دهر لمانځه دپاره وحرم شريف ته راتلی، اود خپل لاس د مزدوری څخه يي خوراك كاوه، خپل ټول كارونه يي په خپله كوله. سره ددي چه زما سره دتاريخ ډير كتابونه موجود دي، خو دده دوفات تاريخ نه سو راته معلوم، شيخ قاري صاحب، دی هم په خپلو شيخانو او استاذانو كښي شميرلی‌دی،او وايي ما مشكوة المصابيح دده څخه ويلی دی، او شيخ قاری دی د ښو عالمانو څخه بللی‌دی،اووايي: چه

مولانا سید زکریا دیوه رباني او فاضل عالم مولانا اسماعیل الشرواني دشاگردانو څخه دی،
عزیزه لوستونکی! دقاری صاحب داستاذانو پر پیژندنه باندي به نوره اکتفاء وکړو، اوس به د شیخ قاري صاحب شاگردان درته معرفي کړم، مخکښي خو مي درته وویله، چه امام علی قاري صاحب دخپل وخت رنگارنگ علوم زده کړل، او ډیر وقت یي د کتابو په تصنیف کښي تیر کړی، اوهم به یي شاگردانو ته درس وایه، په یوه حلقه کښي د درس یي وویل:
کچیري زما څخه په ځیني مجلسو کښي داخبره سوي وي په هیره سره اونه یم متوجه سوی چه اصحابو ته ښکنځل کول نه دی کفر، داخبره ماپه دلیل قطعي سره نه ده کړي، بلکي د گمانه څخه مي کړیده، بلکي زموږ په مذهب کښي سیاستاً ښکنځل کونکیواصحابوته دي ووژل سي، ﴿ شم العوارض فی ذم الروافض ﴾ لوحه ٢، بیله شکه دده علمي شهرت او متواضعه اخلاق او ډیر موده اوسیدنه په بیت الحرام کښي ددي سبب سول چه د هري خوا څخه د شاگردانو او دعلم دمینانو وده ته مخه سول، دلیري لیري ځایو څخه به وده ته خلق راتلل او دده بیانیي به یي ترجمه کولی او خپلو ځایو ته به یي دیوي نادره تحفي په شکل وړلي،

## د شيخ امام قاري صاحب شاګردان

۱- عبدالقادر طبري دی،

دده اصلي نوم علامة محي الدين عبدالقادر بن محمد الحسيني الطبري الشافعي المكي دی، دی په یوه ثروتمنده او علمي کورنی کښي زیږیدلی دی په کال «۹۷۶» هجري په مکه کښي په یوه علمی ماحول کښي وروزل سو او ځوان سو، کله چه یي قرآن الکریم حفظ کړی، دده عمر دوولس کاله وو خلقو د روژي په میاشت کښي په همدغه سن کښي په مقام ابراهیم کښي تراویح پسي کولي، وروسته دعلم وحاصلولوته يي دهمت ملا وتړله، دډیرو جیدو علماؤ څخه يي زده کړي او تعلیم حاصل کړیدی، چه یو دهغو علماؤ څخه ملا علی قاري الهروي هم دي، وروسته یي په تدریس او تصنیف شروع وکړل، او فتوی وي به یي صادره ولي، چه په بلاغت او فصاحت کښي ولوړ مقام ته ورسیدی، په یوه خاص ځیراکت او تیز فهمي سره مشهوره سو، په هغه وقت کښي امیر د مکي به هم دده ډیر عزت او تعظیم کاوه، په دغه وقت کښي امیر د مکي « حسن بن ابي نمي » وو دی یي د فتوی پر منصب اود حرم مکی دامام په صفت وټاکه امام طبری ډیر کتابونه

تصنيف کړيدي چه دهغو دجملې څخه يي دغه ډير مشهوره کتابونه دي،

۱- حسن السريرة في حسن السيرة متناً وشرحاً

۲- تفصيل المقالة في التفضيل بين النبوة والرسالة

۳- غرائس الابکار وغرائس الافکار في تفسير بعض آيات القرآن الکريم. په مشهورو او صادقه قول سره په کال ﴿۱۰۳۳﴾ هجری کښي وفات شو

۲- ابو الوجاهة المرشدي دی

دده اصلي نوم علامة قاري عبدالرحمن بن عيسى بن مرشد ابو الوجاهه العمري دی، مرشدي حنفي دی، لقب يي شيخ الاسلام دی، په کال ﴿۹۷۵﴾ هجري په مکه کښي زيږيدلی دی، اوويل به يي دخدای ﷻ څخه غواړم چه زما ژوند او مدفن دواړه دمکي په حرم کي سي، مرشدي په يوه علمي ماحول کښي ځوان سو، قرآن يي حفظ کړی، اوپر ملا علی قاري باندي تجويد ووايه. په مسجد الحرام کښي د ختم تراويح به يي ورکولي او ډير علماء به ترشا پسي ولاړ وه، دحجاز د ډيرو جيدو علماؤ څخه يي هر نوع علم لکه: فقه، ادب، او شعر زده کړی، اوهم يي په حجاز کښي ډيري مهمي وظيفي انجام کړلی چه ځيني دهغو څخه يي دادی لکه د مسجد حرام امامت او په

حرم کښې تدریس کول، اوپه دارالافتاء کښې پر مذهب حنفي باندې فتوی ورکول، وروسته د مکی قاضي مقرر کړه سو، بیا ﴿ دیوان الانشاء﴾ هم ورته وسپارل سول، وروسته دیوه مشکل سره مخامخ سو او باقي ژوند یي په بندیخانه کښې دلاسه ورکړی، هغه داسي وو،مرشدي د مکي داميراو د مکی د پولیسو په نزد د ډېر احترام او اعتبار خاوند وو، په دغه وخت کښې د مکي امیر محسن بن الحسین بن الحسن بن ابي نمي وو، کله چه شریف وفات سو، دمکی امارت واحمد بن عبدالمطلب ته ورسیدی وسلطي ته درسیدو سم یي دمرشدي پر کور قبضه وکړل اودده ټول مال او جایداد یي ورځخه ضبط کړل، اودی یي بندي کړی ترڅو په بندیخانه کي دجمعي په شپه پر ﴿۱۱﴾ ذذي الحجي دمیاشتي په کال ﴿۱۰۳۷﴾ هجری کي په خفه سره وواژه شو، دی هم دښو تصنیفاتو درلودنکی وو چه دده دکتابو څخه دا مشهوره کتابونه دي،

۱- براعة الهلال، فیما یتعلق باالشهروالهلال،

۲- شرح عقود الجمان للسیوطي،

۳- الوافي في شرح الکافي فی العروض،

دده دریم شاگرد

ابي فروخ الموروي دي، دده اصلي نوم ﴿ علامه ابوعبدالله محمد بن ملا فروغ بن عبدالحسن بن عبدالخالق الموروي

دی، په اصل کي دی د مورة دکلي دی په روم کي، اصلاً دی په مکه کښي زیږیدلی دی په کال ﴿۹۹۶﴾ هجری کي هلته دپلار په غیږ کښي ځوان سو، په کوچنیوالی کي قرآن په یاد کړي اود قرآن تجوید یي وکړي، دډیرو علماؤ څخه یي زده کړه وکړل، چه یودهغو علماؤ څخه ملا علی قاري هم ووچه ده زده کړه ورڅخه کړیده. صحیح البخاری او مسلم او نور داحادیثو کتابونه یي دده څخه ویلي دي، اوپه علمی فقه کښي دښه پوهي خاوند وو، دښو فاضلو علماؤ دجملي څخه ښه عالم ورڅخه جوړ سو، فتوی به یي ورکوله اوپر فتاوی وو باندي به یي شرحي لیکلي، دی لا دشلو کالو ووچه څو وظیفي یي اجراء کولي، شیخ عبدالله مرداد وایي: دی په مقام حنفی کښي مدرس وو، بیا په مدرسه کښي دمحمد شاه مدرس سو، بیاپه مرادیه مدرسه کښي مدرس سو، بیا په مقام حنفی کښي امام وو، اوهم دمسجدالحرام خطیب وو، اود مسجد نمرة او مشعر الحرام خطابت هم دده په غاړه وو، په اخیرو شپو کښي یي فتوی پریښودل، پر دروازه باندي ولیکل تر تور خط راتیریدل ممنوع دي، دی هم د څو رسالو درلودنکی دی،

۱- القول السدید فی مسائل الاجتهاد والتقلید،

۲- اعلام القاضي والداني بمشروعیة تقبیل الرکن الیماني،

۳- رسالة في عدم کراهیة الاقتداء باالامرد، ﴿ یعني په بدکاره پسي اقتداکول﴾ په کال ﴿۱۰۶۱﴾ هجري کښي وفات سو،
دده دشاګردانو په اړه هم دغومره بس ده، اکتفاء به په وکړو،
اوس به دده دمذهب او فقهی اود علماؤ رایي دده په باره کښي وګورو، چه نور علماء دده په اړه څه وائي،
امام شیخ علی قاری د امام ابو حنیفه په مذهب وو، دفقهی علومو درس او تعلیم یي وکړي او په هرات کي ځوان سو،
تصنیفونه او تالیفات یي وکړل، اود ډیرو مشهورو علماؤ د جملی څخه سو، سره ددغه دخپل عصر دډیرو برجسته او مشهورو فقهاوو څخه سو، ده رحمة الله علیه دهیڅا سره تعصب او کینه نه درلودله، بلکی په هرڅه کښي په سلف الصالحینو پسي اقتداء کوله، اوپه هره مسئله کښي د دلایلو شرعی وو څخه یي استفاده کوله اوهم هره مسئله به یي پر علماؤ باندي عرضه کول، بیابه یي د قرآن او احادیثو سره تطبیق کوله، همیشه به دړانده تقلید څخه ډیر لیري ګرځیدی او ډیر احتیاط یي ورڅخه کاوه، په دغه طریقه سره ئي وعلم ته پراختیا او وسعت ورکړی، څو وحقیقت ته د علم ورسیدی،
ده به د هر عالم قول قبلاوه چه هغه به پر خپل قول باندي دلیل درلودی بیله کوم تعصب او تبعیض څخه، اوده به په هیڅ موضوع کښي بي ځایه تشدد او سختي نه کول او ویل: به یي

په دین کښي د خدایﷻ تعصب کول ممنوع او خطرناکه عواقب لري، ځکه په هر کار کي چه ضرر وي دهغه څخه موږ منعه کړه سوي یو. لکه څنګه چه الله تعالیﷻ په قرآن کښي فرمایي: ﴿یَااَهْلَ الْکِتَابِ لاَ تَغْلُوْا فِيْ دِیْنِکُمْ وَلاَ تَقُوْلُوا عَلَی الله الاَّ الْحَقَّ. اِنَّمَا الْمَسِیْحُ عِیْسَی ابْنِ مَرْیَمَ رَسُوْلُ الله وَکَلِمَتُهٗ اَلْقَاهَا اِلَی مَرْیَمَ وَرُوْحٌ مِنْهُ فَآمِنُوا بِا الله وَرَسُوْلِه وَلاَ تَقُوْلُوْا ثَلاَثَةٌ اِنْتَهُوا خَیْراً لَکُمْ اِنَّمَا الله اِلٰهٌ وَاحِدٌ سُبْحَانَهٗ اَنْ یَکُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ. لَهُ مَا فِيْ السَّمٰوٰاتِ وَمَا فِيْ الْاَرْضِ وَکَفٰی بِا الله وَکِیْلاً﴾ الآیة،سورة النساء ۱۷۱،

ای اهل د کتابو مه کوی مبالغه او زیاتوب او تجاوز د حدودو څخه ددین، په دین خپل کښي اومه وایاست تاسو پر الله مګر ویل حق اورښتیا، بیشکه همدا خبره ده بله نده، چه مسیح علیه السلام زوي د مریمي دی، او رسول د اللهﷻ دی، او داسي کلیمه دده ده چه غورځولي ده اللهﷻ دغه کلیمه ومریمي ته او روح دی دجانبه څخه د اللهﷻ. نو ایمان راوړی پر الله ﷻ او پر رسولانو دده اومه وایاست تاسي داسي چه معبودان دري دي، منع سي تاسي له دي وینا او خبرو څخه، اختیار کړی توحید، چه خیر دی تاسوته، بیشکه همدا خبره ده چه اللهﷻ یودی او حق معبود دی، بي شریکه اوبي عیبه پاکي دي وي ده لره له دي څخه چه وده ته نسبت دزوي وکړه سي،

داوه دآیت لفظي ترجمه، اوس به دلوړ ایت تفسیر وکړو،

کتابیانو دخپلو انبیاؤ علیهم السلام په تعریف کولو کي دمبالغه څخه کار اخستی اود حدودو څخه دباندي وتل، خپل انبیائي خدایان یاد خداي زامن بلل، نو الله ﷻ فرمایي: چه ددین په کارو کښي مبالغه مکوی، اوپر هغه چاباندي چه اعتقاد لری، دهغه په تعریف کښي له حده څخه تیری مکوي، دغونده خبره چه محققه او رشتیا وي دهغي څخه زیاتوالی مه کوي، اود الله تعالیﷻ د مقدس شان په نسبت هم هغه خبري وایاست چه بیخي رشتیا او محققي وي، اودخپله ځانه څخه هیڅ شی مه وایاست، ستاسوڅخه څومره لویه غلطي سویده، چه حضرت عیسی ﷺ ته چه دالله ﷻ رسول دی، اودده په حکم پیداسویدی، دوحي په خلاف دالله ﷻ زوي ورته وایاست، او د درو خدایانو عقیدت مند سوي یاست، تاسو وایاست یو الله ﷻ دوهم حضرت عیسی ﷺ او دریم یي مور بي بي مریمه ده، نودداسي خبرو څخه خوله ونیسی، دالله ﷻ ذات ددغه ټولو شیانو څخه منزه اوپاك او مقدس دی، داټوله خبري ددي څخه پیدا سویدي چه تاسو دوحي اطاعت ونکړی، که تاسو دوحي متابعت او اطاعت کړی وای یامو کولای نو الله تعالیﷻ ته به مو د اولاد نسبت نه کاوه، اود درو خدایانو په منلو سره به مو ځانونه نه مشرکان کولای، اود سید الرسول محمدﷺ

اودافضل الكتاب قرآن مجيد او فرقان كريم تكذيب به مو نه كولاى، اوداسي پاخه كافران به نه كيدلاى،

﴿ فايدة ﴾ دكتابيانو يوي ډلي هم د حضرت عيسى عليه السلام رسالت ونه مانه او دده په وژلو پسي يي ملاوي وتړلي چه دهغي ذكر مخكي تير سويدى، بلي ډلي بيا دى دخداي زوي وباله چه دواړي ډلي كافراني سولي، ددغو دواړو ډلو دگمراهي سبب همداسو چه د وحي څخه يي مخالفت وكړى، ددي څخه داښكاره او معلومه سول چه نجات يوازي د وحي په متابعت پوري منحصر دى، تفسير القرآن الكريم،دژباړونكي له خواڅخه،

<u>دپښو سترگو ړنده رايي دقارى په باره كښي:</u>

مخكي مود شيخ قارى صاحب دعلميت ولوړ مقام ته اشاره وكړل چه دى د علميت وكومي لوړى او عالى درجي ته رسيدلي وو، خوبياهم دده علمي شخصيت لكه څنگه چه ښايي ښكاره نه سو، ځكه دده لوړ شخصيت دعلماؤ په رايو او دده د سيرت په ويلو سره اوپه مطالعه كولو سره دده د كتابو پيژندلاى سو، داخو معلومه ده چه دهريوه دده په باره كښي جلا رايه ده اوهر يو دده دعلم او عمل په باره كښي جلا جلا خبري كوي كه هرڅومره دده صلاح او فضيلت لوړسي هغه بل

نه ورته قانع کيږي، اوکه هرڅومره فاضل او نيك سي بياهم د انتقاد څخه نسي خلاصيداى،
هر انسان چه په خپل قول سره خبره کوي هيڅوك دده خبره نسي ماتولاى غير قول د نبي ﷺ اوچه دقلم څخه اخستنه کوي حتما به خطاوزي جناب على قاري صاحب هم يو ددغو علماؤ څخه دى، چه ځيني خلق يي صفت کوي اوښه ورباندي وايي، اوځينو بيا ورباندي داعتراضاتو او انتقاداتو يرغلونه کوي، اوس به زه تاسو ته هغه دواړي ډلي وښايم کومه ډله چه دده ستاينه اوصفت يي کاوه اوهغه بله ډله چه پرده باندي انتقادونه کوله دوي په لاندي ډول دي،
هغه علماء چه دده ثناء او توصيف يي کاوه په لاندي ډول دي،
دشيخ على قارى ډيرو علماؤ ښه ويل اودده صفت او توصيف يي کاوه،
هميشه به يي په ښه او صافو سره ياداوه، ټول په يوه اتفاق دده پر علميت باندي قانع وه، اودده پر پوهه او ذکاوت باندي اعتراف کاوه، دده دعلميت پله دوخت او زمان پر ټولو علماؤ باندي لوړه اودرنه وه پر رنګارنګ علومو او معارفو باندي دوخت لاس برى وو، دوستانو دى دوخت دعلومو روښانه او ځلانده ستورى باله، هريوه به ويل دده په برکت علم دترقى اوپر مخ تګ ودرشل ته ورسيدى شيخ عصامي په خپل کتاب

﴿ الجامع العقلية والنقلة ﴾ کښې دده په صفت کښې وايي: چه دی د سنت نبوي وو يوه تږته ده. دی د مشاهيرو مشهوره او دحافظانو حافظ دی، اود پوهانو پوه دی، دعصامي په شاني داسي ډير علماء سته چه دی يي په هرڅه کښې ستايلی اودده صفت يي کړيدی، لکه شيخ العابدين وايي: دی دقاريانو خاتمه وه بيابه دده په شان بل قاري پيدانه سي، اودی خاتمه د فقهاؤ او محدثينو وو دی، د محقيقينو او مدقيقينو يوه نمونه وه، او علامه لکنوي وايي: دی ديوه پراخه او وسيع علم درلودنکی عالم او درلودنکی دښکاره فضل او ښيګڼو وو، او شيخ عبدالستار د هلوي وايي: دی د خپل عصر او زمان دبلدالحرام عالم وو، د قرآن او سنتو يوه تږکره وه اود قرآن او حديثو امام وو اود هلوي دی مجدد دعلم شرعی هم بللی دی، لکه رسول الله ﷺ چه په يوه حديث کښې فرمايي: ﴿ انّ اللّهَ يَبْعَثَ لِهَذِهِ الْاُمّةَ عَلى رَاسِ كُلُّ مِائةِ سَنَة مَن يُجَدّدْ لَها دِيْنَهَا ﴾ الحديث رواه ابو داؤد.في سننه، ج ١ ص ١٠٩، دارالکتب العلمية. ژباړه: خدايتعالیﷻ دهرامت لپاره دسلو کالو وروسته يو نوی کونکی ددين را استوي چه ددوي دين ورته نوي کړي، دايوه بل نوع ثناء او ستاينه دامام شيخ قاري ده چه ډيرو علماؤ دی د مجددينو څخه بللی دی،

## دقاری صاحب تصنیفات

قاری صاحب هم د نورو علماؤ په شاني په زرهاوو کتابونه تالیف او تصنیف کړيدي، په گوناگون علومو کښي، دده تصنیفونه نشر سول خومتاسفانه دوخت په تیریدوسره د میانه څخه ولاړل او ضایع سول لوی لوی کتابخانی مي ولټولی دده دمؤلفاتو څخه یواثرنه لوی اونه هم کوچنی پلاس راغلي، حال داچه دده رحمة الله علیه موږ ته ډیر ښه تصنیفات پري ایښي دي، خلق وايي دده تقریباً دري سوه کتابونه تصنیف کړیدي، شیخ عبدالله مرداد دابوالخیر وايي چه مادقاری صاحب دیوه لمسي څخه واوریدل چه هغه ماته وویل: زمادنیکه څخه دري سوه تصنیف سوي کتابونه راپاته سوي وه، چه متاسفانه په لوی جهاني جنگ کښي تقریباً نیمايي دمیانه څخه ولاړل او ضایع سول، نوځکه په صحیح توگه سره اوس دده دکتابو حقیقي شمیر نه سمه یادولای، خو تقریباً دومره ویلای سم چه دده تصنیفات چه اوس پاته دي ویوسلو نه شپیته کتابو ته رسیږي، ټوله کوچني او لوي کتابونه اورسالي یي دادي،

اولاً- دده چاپ سوي تالیفات اوه دیرش کتابه دي، چه دهغو دجملي څخه مشهوره کتابونه او رسالئ په لاندي ډول دي،

۱- الاحاديث القدسي الاربعين، يعني څلويښت قدسي حديثونه دايوه ډيره ممتازه او دقدر وړ رساله ده، ټوله هغه معظم اود قدر احاديث يي پکښې راټول کړيدي کوم چه صحابه وو کرامو په خپلو کتابوکي رانقل کړيدي، ده يي اسنادونه ورڅخه حذف کړيدي چه لوستونکی وکړای سي په ډيره اساني يي حفظ اوپه ياد کړي، دارساله داولي پلا دپاره په کال ﴿۱۳۲۴﴾ هجري کښې په استانبول کي چاپ سول. بيا په کال ﴿۱۳۴۵﴾ هجري کي په حلب کښې چاپ سول،

۲- عقيده وي دلايل دامام ابو حنيفه، په باره کښې دمور اوپلار درسول اللهﷺ دايوه داسي رساله ده چه مصنف دامام اعظم هغه دلايل پکښې ذکر کړيدي چه درسول اللهﷺ موراوپلار پرکفر باندي مړه سويدي، دوي وديته تللي دي چه دوي پر کفر باندي مړه سويدي، اودوي پر خپله دغه باندي دلايل هم راوړيدي، خو مصنف هم د مخالفينو رد په ښه مظبوتو دلايلو سره کوي، دده دغه رسالة ديوه کتاب په شکل پنامه د ﴿ عَقِيْدَةُ الْمُوَحِّدِيْنَ وَالرَّدْ عَلَى الضَّلاّلِ وَالْمُبْتَدِعِيْنَ﴾ شيخ عبدالله بن سعدی الغامدی العبدلی دارسالة ترتيب کړل بيايي وجناب شيخ عبدالعزيز بن بازته وړاندی کړل، هغه ډيره وستايل اوبيايي په عربستان سعودی کښې په کال ﴿۱۴۱۱﴾ هجری کښې چاپ کړل،

۳- اَلاَسرارالمرفوعَة في الاخبار المَوضُوعَة اَلمعرُوفَة بِاالمَوضُوعَاتِ الكُبرٰی، داد موضوعاتو يو مهم كتاب دی، مصنف يي دډيرو علماؤ كرامو دجدوجهد څخه استفاده کړيده اوډير هغه سلبيات چه پکښي وه دهغوتلافي او ځای نيونه يي وکړل، همداوه چه په موضوعي احاديثو سره مشهوره سول، مؤلف د عباراتو په جوړولو او ترتيب کښي دډير احتياط څخه کار اخستی دی، داولي پلا دپاره دعامريي په مدرسه کښي په کال ﴿۱۲۸۹﴾ هجری کي په استانبول کښي د ﴿ مَوضوعَاتِ الكَبِيرٰ﴾ تر عنوان لاندي چاپ سول اود اخيري پلا دپاره په تحقيق د محمد السعيدبن بسيوني زغلول دخواخښه پنامه د ﴿ اَلا سرَارِ المرفوعَةِ الا خبَارَ فِي المَوضُوعَة﴾ په كال ﴿۱۴۰۵﴾ هجری کي په مطبعه کښي د ﴿ دار الكتب العلمية ﴾ په بيروت کي چاپ سول، چه وروسته بياهم څو واره په دغه مطبعه کښي چاپ سول،

۳- بَيَانُ فِعلِ الخَيرِاذا دَخَلَ مَكَةَ مَن حَجَ عَنِ الغَير، داد امام شيخ علی قاری صاحب يوه داسي رساله ده چه دوخت علماء ودغو مسئلو ته حيران وه، کچيري دبل دپاره حاجي ديوه ليری ځايه څخه راتلی اوبيله احرام څخه دميقات ترځای تيرسو، ايادغه شخص مخالف بلل کيږي، که يا؟ دغه رساله

دبولاق په ښارکښې په مصر کې په کال ﴿١٢٨٧﴾ هجري کې چاپ سول،

٥-﴿ اَلتِبيَان فِيمَا يَتعَلَق بِلِيلَة النُصف مِنْ شُعبَان وَلَيلَةُ القَدر﴾، دایوه داسي رساله ده چه مؤلف هغه شیان پکښې ذکر کړیدي چه په هغه باره کښې دنیمایي دشعبان اود لیلة القدر دشپي احادیث او اثار او واقعات پکښې راغلي دي، اوپه دغه رساله کښې تفسیر دسورة القدر هم سته، او فضایل او تفسیر دسورة الدخان داولو آیاتوهم پکښې سته خودمؤلف ډیر ترجیح دهغو احادیثو وخواته ده چه په دغه باره کښې راغلي دي، دغه رسالة هم د مصر په بولاق نومي ښار کښې په کال ﴿١٣٠٧﴾ هجري کښې چاپ سول. په نامه د ﴿ فتح الرحمن بفضائل الشبعان ﴾ تاریخ ادب العربي د کارل بروکلمان ۹ حصه ج ۱۳، ب ۱۴، ص ۹۳،

دوهم- دامام قاری صاحب، هغه کتابونه او رسالی چه همداسي بي چاپه پاته دي دهغو تعداد، و نه اویاوو، ته رسیږي، داهم پر درو حضو باندي ویشل سویدي، چه یوه حصه یي مشهوره ده اوبله حصه یي غیر مشهوره ده او یوه حصه یي بیخي ورکه او دمیانه څخه تللي او ضایع سویدي، اولاً به دده مشهوره تالیفات یاد کړو،

۱- اَلا ثمَار الجنيّة فِي الا سْمَاءِ الحَنيفَه، په دغه کتاب کښي د حنيفي طبقات ذکر کړه سويدى، لکه څنگه چه يي دنامه څخه معلومه ده، دانسخه په ډير ښايسته خط سره په ډير واضيح شکل ليکل سويده، دملك عبدالعزيز په تاريخي کتابخانه کښي په مدينه منوره کښي پرته ده په مجموعه کښي دعارف حکمت ﴿ نمبر: ۹۰۰۱۳، تاريخ عربي﴾، ناشر وايي زما سره يي نسخه موجوده ده، ۱۱۰ صفحي لري،

۲- اَلا دَبْ فِيْ رَجَبِ الْمُرَجَبْ، په دي رساله کښي مؤلف درجب دمياشتي فضايل اوبرکات ياد کړيدي، اوهم يي دټولو محرمو مياشتو اداب ا واحکام په دغه رساله کښي بيان کړيدي، ددغي رسالي يوه نسخه دمسجد نبوي په کتاب خانه کښي موجوده ده په نمبر ۸۱\۸۰ کښي ددي يوه نسخه زما سره هم سته د عکس په شکل کښي،

۳-﴿ اَرْبَعُونَ حَدِيْثًا فِي جَوَامِعَ الْكَلِمِ﴾، دارساله په يوه داسي شکل سره ترتيب سوي ده چه ډير اسانه او ساده الفاظ پکښي کارول سويدي چه هريويي بياهم دډيرو معناوو درلودنکي دي، غالباً داسي حديثونه پکښي سته چه صرف د دوو کليمو درلودنکي وي، څيني احاديث يي د درو يا څلورو کليموڅخه مشتق او جوړ وي، ددغي رسالي يوه نسخه د مديني منوري

داسلامي پوهنتون په کتابخانه کښي پرته ده په نمبر ١٥٨٩\٦ مجموع باندي،

۴-﴿ اَرْبَعُونَ حَدِيْثا فِي فَضْلِ الْقرآن﴾، ددي رسالي په سر کښي مؤلف اول خپله پيژندنه کړيده وروسته يي ليکلي دي ﴿ اما بعد فيقول خادم کتاب الله القديم وحديث النبي الکريم على بن سلطان محمد القاريي، وروسته ليکي دايو داسي څلويښت احاديث دي په باره کښي د فضيلت د قرآن چه ما انشاء الله قدر الامکان په ډير ښه توګه تاسوته وړاندي کړل، دغه نسخه دعارف حکمت په کتابخانه کښي پرته ده په نمبر ٢٨\٨٢ مجامعی، ۴ ق، پرته ده،

۵- اِسْتِئْنَاسُ النَّاسِ بِفَضَائِل ابن عباس، په دی رساله کښي مؤلفَ دَ ابن عباس فضائلَ او سيرت بيان کړيدی، دانسخه هم داسلامی پوهنتون په کتابخانه کښي په نمبر ١٥٨\١٢، ١٣ ق پرته ده،

۶- اَلاسْتِدعَاء فِي الاسْتِسقَاءَ، په دي رساله کښي مؤلف د استسقاء د لمانځه اداب په ډيره واضيحه او مکمله طريقه سره بيان کړيدي، داستسقاء دلمانځه داسي مسائل وه چه ډير علماء يي متحيره او حيران کړي وه، په باره کښي دادابو او حضور نيولو داستسقاء دلمانځه دپاره دا نسخه هم داسلامي پوهنتون په کتابخانه کښي پرته ده په نمبر ١٥٩\٣۴، ۴ق،

کښي که ماته دغه نسخه په ژوند کښي پلاس راغلل انشاء الله حتما به يي په پښتو ژبه دخپلو قندهاري ورونو او دنورو پښتنو دخدمت دپاره ژباړم،

۷- اَلا عتنَاء بِالغنَاءَ فِي الفَنَاءَ، دايوه داسي رساله ده چه مؤلف دغزلو او ساز داوريدلو په باره کښي ليکلي ده، دی په دغه رساله کښي وايي که ځيني صالحان اوښه خلق زما څخه دساز او غزلو داوريدلو په باره کښي پوښتنه وکړي، هغه ماپه دغه رساله کښي راجمع کړيدي، دقرآن او احاديثو په رڼا کښي اوهم په دغه اړوند په دغه رساله کښي دځينو مشهورو او قدوة امامانو اقوال مي راټول کړيدي، دا نسخه هم داسلامی پوهنتون په کتابخانه کښي موجوده ده، په نمبر ۱۵۹۱\۵۲ ،۸ق او د مديني منوری د مسجد په کتابخانه کښي هم دغه نسخه موجوده ده پر نمبر ۸۰\۸۱ مجاميع اويوه عکسي نسخه يي زما سره هم موجوده ده،

۸- ﴿اعرَابُ القَاری عَلی اول بَابُ البخاری﴾، په دی رساله کښي مؤلف اعراب د قول څخه دبخاری ﷺ بيانوی اودا بيانوی چه داولی پلا دپاره دوحی نزول پر رسول الله ﷺ باندي څنگه شروع سو. دا نسخه هم داسلامی پوهنتون په کتابخانه کښي پر نمبر ۱۵۹۰\۱۲۴ ، ۳ق

کښي پرته ده او همدارنگه داغه نسخه د مدیني منوری د
مسجد په کتابخانه کښي په نمبر ۸۰\۸۱، مجموع باندي پرته
ده او عکس یي هم زما سره سته،

## دده وفات

ډیرو څیړونکو ویلي دي چه شیخ علي قاري صاحب په مکه
مکرمه کښي په کال ﴿۱۰۱۴﴾ هجري کښي وفات سویدي.او
ځیني نور پر وجه د تحدید او حتمي باندي وایي.چه قاري
صاحب دذکر سوي کال د شوال په میاشت کښي وفات سویدي
او دجنت المعلي په مشهوره هدیره کښي د مکي شریفي
وخاورو ته وسپارل سو:
دده د وفات په باره کښي ځیني ضعیفه او غیر معتبره اقوال
هم شته چه داسي وایي:
۱:ځیني وایي:دده وفات په کال ﴿۱۰۱۰﴾ هجري کښي بولي خو
موږ دده د رد په باره کي وایو.چه شیخ علي قاري په خپله وایي
چه زه د﴿شرح عین العام﴾ دلیکلو څخه دجمعی په شپه درجب
دمیاشتي دکال﴿۱۰۱۴﴾ خلاص سولم،
۲- ځیني وایي: چه علی قاری په کال ﴿۱۰۱۶﴾ هجری کښي
وفات سویدي، حاجي خلیفه دخپل کتاب ﴿کشف الظنون﴾ په

ځوځایو کښي لیکلي دی چه داخبره د محققونو دمنلو څخه لیری خبره ده،
۳- ځیني وایي: چه شیخ علی قاری په کال «۱۰۴۴» هجری کښي وفات سویدي لکه څنګه چه حاجي خلیفه په خپل کتاب «کشف الظنون» کښي ذکر کړیده،
خو شاید دابه صحیح وی چه دده وفات په کال «۱۰۱۴» هجری کښي سویدي په هرحال دغه دري سره اقوال امام لکنوي نه مني اوردوي یي، ځکه دی وایي چه زه شیخ علی قاري ډیر ښه پیژنم، ځکه دی د مرقات مؤلف دی چه هغه شرح دمشکات ده، اودنورو کتابو مؤلف هم دی دده اصلي نوم ملا علی بن سلطان محمد دي، ځیني وایي نوم یي محمد سلطان هیروي دی چه په کال «۱۰۱۴» هجری کښي وفات سویدی، نه په کال «۱۰۱۶» هجري کښي اونه په «۱۰۴۴» هجري کښي اونه هم په «۱۰۱۰» هجري کښي وفات سویدی لکه څنګه چه دغه د اوس وقت کتابو او رسایل یي ذکر کوي،
وایي څه وخت چه دده دمرګ خبر ومصر ته ورسیدی نوپه جامع ازهر کښي دده غیبانه دجنازي لمونځ وکړه سو، داخبره پر دي باندي دلالت کوي چه دده شهرت وټوله اسلامي نړی ته رسیدلی وو، حتی دجامع الازهرعالمانو هم دده ډیر قدر او عزت کاوه اودده دعلمیت ولوړ مقام ته قانع او قایله وه،

الله سبحانه وتعالیﷻ دي باندي ورحمیږي، الله تعالیﷻ دي خپل پراخه جنتونه دده په نصیب کړي، ﴿انه ولي ذالك والقادر عليه﴾

## د شیخ علی قاری صاحب عقیده

شیخ علی قاری صاحب د هغو علماؤ د جملې څخه وو، چه د عقیدي درس یي ورکاوه، اوهم یي د عقیدي په باره کښي په ډیره پراخه پیمانه څیړني او بحثونه کړيدي،اوهم به جناب قاری صاحب وعقیدي ته یوه خاص توجه کوله او ډیر قدر او اهتمام یي وعقیدي ته ورکاوه،

د عقیدي په باره کښي یي ډیر کتابونه تالیف او تصنیف کړل، او ډیر داسي رسالی یي ولیکلي چه په هغه کښي ومبتدعینو او گمراهانوته پکښي خوله ماتونکي جوابونه ورکړه سوي دي، خو پیاهم د ده ضد او متضاد کسان ورته د ﴿ماتریدی﴾ پنامه وایي، حال داچه دده منهج په عقیده کښي مطابق داهل سلف الصالحینو دی، دده عقیدوي مسایل په هرڅه کښي دسلفو سره مطابق او یوشاني دي، دکتاب القرآن او حدیثو سره مطابق،ملا علی صاحب هیڅکله داسي خبره نه کوله چه پر هغه به یي د قرآن او حدیث دلیل نه درلودلای، شیخ امام

علی قاری صاحب د متکلمینو درایو څخه ډیر بدوړل او په هرڅه کښي دعلم الکلام سره يي ضديت درلودی،
قاری صاحب ته خدایتعالیﷻ د شرح فقه الاکبر دلیکولو توفیق ورکړي، امام صاحب په خپل کتاب شرح د فقه اکبر کښي وايي: پوه سه چه علم التوحید یوداسي علم دی چه شرف دتائید دټولو علومودي، په دي شرط سره چه دمدلول څخه د قرآن اوسنت اوجماعت څخه خارج نه وي، په عقیده کښي باید وعقلي دلایلو ته ځای ورنکړه سي، لکه څنګه چه دبدعت خاوندانو داسي وکړل په عقیده کښي وعقلي دلایلوته ځاي ورکړي، او اصلی لار يي پریښودل هغه اصلي لاره چه په هغه باندي اهل سنت او جماعت وه، سره ددي چه ټول عقاید په کتاب کښي د خدایﷻ اوپه سننو کښي موجود دي، لکه څنګه چه الله تعالیﷻ په قرآن کي فرمايي: ﴿ هَذَا بَلاَغٌ لِلنَّاسِ ﴾ سورة ابراهیم ایت ۵۲، یعني دغه قرآن خبر رسونه ده ﴿کافي ده له جانبه څخه دالله ﷻ ﴾ دپاره دخلقو چه پند ځیني واخلی، یعني د غفلت دخوبه څخه ویښ سي اودالله ﷻ څخه وبیریږي او دده په آیاتو کښي غور وکړي چه له هغه څخه مو دالله تعالیﷻ په وحدانیت باندي یقین حاصل سي او دعقل وفکر څخه کارواخلی اوپر نصائحويي عمل وکړی،

بسم الله الرحمن الرحيم
وَبِهِ نَسْتَعِيْنُ

دلوی خدای ﷻ څخه غوارم چه ددي دنيا دنوو خرابونکو فتنو څخه نجات راکړي اوهغي لاري ته مو هدايت کړي چه په هغه کښي ددي دنيا او اخيرت ښګينی نغښتي وي، جناب شيخ الامام العلامة محمد بن اسماعيل بن محمد المعروف ببدرالرشيد ﷺ وايي: کله چه خلق خراب او فاسد سول نوددوی زړونه هم ورسره خراب او فاسد سول، چه دزړو په فساديت سره يي ټول بدنونه خراب وفاسد سول، ددی د فساديت سبب د درواغو او چغلی ويلو زياتوب د خلقو تر ميان دی، خلق ددنيا په زخاريفو او زيب وزينت اخته سول د خدايي او ديني کارو سره د خلقو دارومدار کم او لږ سو، هغه شيان چه دويته په اخيرت کښي ګټه او فايده رسوي هغه يي پريښودل ودنيا يي کاروته يي توجه زياته سول، همدغه سبب وو چه شيطان ددوي دايمان د خرابولو قصد وکړی چه بايد ددوي ايمانونه خراب کړي او دزړو اباد تعميرونه يي په کنډوالو وربدل کړي، نو ،يي اول د خرابيدلو شروع ددوي د ژبو څخه شروع کړل، ددوي پر ژبو يي داسي خبري ورجاري کول شروع کړلي چه په

دغو خبرو ودويته د كفر لار خلاصه كړي او ټوله نيك عملونه چه يي په عمر كښي كړيدي هغه ټوله حبطه او وربرباد كړي، اودى په دنيايي لذاتو او خوندو كښي دومره نشه او مدهوش كړي چه په دي هيڅ پوه نسي چه ددوي پر ژبو باندي څنګه خبرى جاري دي، خپل ايمانونه يي دشيطان په لوموكو كښي بند پريښودل اود خپلو اعمالو د بربادى او حبطه كيدلو هيڅ فكرو خيال هم نسو ورسره پاته، په دنيايي كارو كښي دومره مشغوله سول چه عقبا ورڅخه هيره سول، شيطان انسانان په دنيايي لذاتو كښي دومره اخته كړل، لكه څوك چه ډير مست شراب وڅيښي اوله هرڅه بي باكه اوبي پروا بيده سي، چه هيڅوك يي بيا ددى خوب څخه نسي بيداره كولاى غيرله سكرات الموت څخه ﴿ أُولٰئِكَ الاغْلاَلُ فِيْ اَعْنَاقِهِمْ وَ اُولٰئِكَ هُمُ الغَافِلُوْنَ ﴾ يعني دوي مهار سويدي اوپه غاړه كي دغلامي تنابونه لويدلي دي او دوي غافلان او ناپوهان دي،

ما د علماؤ او پوهانو په مجلسو كښي داسي خبري اوريدلي دي چه هغه يوناكاره او رذيل وناپوهه خلق هم نكوي،

دښو مكرمو او موصوفو او ددرس كونكوعلماؤ په مجلسو كښي داسي فتوى وي صادريږي چه هغه دجاهلانو خلقو په مجالسو كښي هم شايد صادري نه سي، بيعقلان او ناپوهان خوداسي خبري كوي چه اوريدونكي يي فوراً داګمان كوي چه

داکافر دی، وايي داکار پرماباندي خدایﷻ هم والله که ثابت کړي او داسي نوري خبري کوي چه هره يوه خبريي دويونکي دپاره کفردي،
بدرالرشيد صاحب وايي: هغه وخت ما دوي نه سوای خبرولای دقناعت دپاره پوره کتابونه او دلايل نه وه موجود، ماويل که دوي راسره بحث او مناقشه شروع کړي اوزما سره قانع کونکي جوابونه نه وي نو شرم او عار دی، نوپه دي تلاښ کي سوم چه د فتاوی ووکتابونه پيدا کړم اود مجتهيدينو اقوال پيداکړم او ددوي اختلافات په مسائلو کښي پيداکړم، هغه وو چه خدايتعالیﷻ ټوله ضروری وسائل راته مهيا کړل چه په هغه سره هم طرف مقابل ژړه ولای اوهم مي مقابله کولای سوای، چه زما مقصود ددغه څخه فقه ده، نومي ټوله هغه الفاظ راټول کړل چه په هغه سره يي ويونکي کافر کيږي، سره د دلايلو او اسنادو خو اسناد او دلايل مي بيرته ورڅخه حذف او ليري کړل، ددی لپاره چه دويونکي په حافظه کښي په آساني سره ځاي ونيسي، خودهری مسئلي سره مي وکتاب او صفحي ته اشاره کړيده، زما ددی الفاظو دکفر دراجمع کولو څخه مقصد دادي چه هر مسلمان او مسلمانه ښځه پوه سي او خپله ژبه دبدو الفاظو دويلو څخه وساتي، اوخپل نيک عملونه حبطه او بيکاره نه کړي، اودلايل چه مادننه په خپل کتاب کښي

راوړيدي، د درو شيانو څخه خالي کيداى نه سي حتماً به يو پکښي وي، چه هغه مسخري او سپکاوى او د حرامو شيانو حلال بلل دي،

الهي زما ژبه وساتى او د ټولو مسلمانانو ژبي وساتي دداسي خبرو څخه چه هغه موږ کافران کوي يامو کفرته نژدى کوي،

داوه دکتاب دمصنف پيژندنه او دده مقصددکتاب دليکلوڅخه دلوي خداي ﷻ څخه غواړم چه داکتاب دټول اسلام اومسلمانانودپاره سبب دهدايت وګرځي اوراوګرځي ولاري ته دهدايت، آمين يارب العالمين،

ژباړونکي

الحاج عبدالعزيز ﴿تسليمي﴾

# بسم الله الرحمن الرحيم

## کفر څه شي دی؟

## څنګه ځان ورڅخه وساتو؟

ډیر حمد او ثناء او ستاینه دي وي و لوي پالونکي او روزونکي ته د دواړو جهانو او هم درود او سلام دي وي پر سردار د مجاهدينو او امام د رسولانو او خير خوا د انسانيت او امتيانو حضرت محمدﷺ خير البشر والبشرية او دده پر آل او اولادو باندي.

وروسته تر تحيه او سلام څخه دا ضروري بولم چه درته ووايم چه مصنف د دغه کتاب چه اوس ستا په لاس کښي قرار لري داد يوه داسي لوړ شخصيت او عالم تصنيف دي چه جهان يي په علميت او پوهه باندي وياړي او افتخار په کوي چه هغه شيخ الاسلام العلامه بدر الرشيد الحنفي دي چه په کال ﴿٧٦٨﴾ سپوږميز هجري کښي وفات شوی دی.

اصلي نوم يي محمد بن اسماعيل بن محمود مشهوره په بدرالرشيد ﴿الرشيدي﴾ وو رشيدي يي ځکه بولي چه دي د رشيد د ښار ګوټي اوسيدونکی وو الرشيد د مصر په شمال

کښي د رودالنیل پر غاړه و اسکندریه ته نژدي د یوه ښار نو م دی چه د دغه ځاي ځخه ډیر علماء او محدثین وتلي دي پخپله علامه بدر الرشید الحنفي هم ډیر تصانیف لري خو ددي لپاره چه موضوع ډیره اوږده نسي دده دغه کتاب چه الفاظ الکفر نومیږي اکتفاء په کوو.

لکه چه متل دي چه وایي «مشت نمونه یي خروار است» که څه هم دا کتاب و زیات تشریح و تفصیل ته ضرورت لري خو زه غواړم چه لنډ او مختصر یي کړم ددي لپاره چه پر لوستونکي باندیي لوستل سخت او درانه تمام نه سي.

«اول بحث»

راسي چه موضوع د کفر او تکفیر ښه وڅیړو او پدي خبره ځان پوه کړو چه کفر څه شي دی او څه ته کفر ویل کیږي؟ او که سړی کفر وکړي یا د کفر خبره وکړي نو څه تاوان ورته رسیږي؟

خداي ﷻ خپل بنده گان د ترحم د لاري چه پر خپلو بندگانو باندي یي لري او ډیر مشفق او مهربان دی ور باندي لکه چه اللهﷻ په قرآن کښي فرمایي: ﴿ اَللّٰهُ رَئُوفٌ بِالْعِبَادِ﴾یعني الله تعالیﷻ خپل بندگان په ایمان سره امر کړي دي چه ایمان ضد د کفر دي لکه چه الله تعالیﷻ په قرآن کښي فرمایي: ﴿یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ وَالْکِتَابِ الَّذِيْ نُزِّلَ عَلٰی

رُسُوله وَالْكتَاب اَلذي اُنْزِلَ منْ قَبْلُ وَمَنْ يَكْفُرْ بِا الله وَمَلائكَته وكُتُبِهِ وَرُسُولِهِ وَالْيَوْمِ الْاَخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلالاَبَعِيْدًا﴾ سورة النساء ايت ۱۳۶ يعني اى هغه کسانو چه ايمان مو راوړي دي اي مومنانو ثابت او خالص کړي تاسي يقين خپل پر الله ﷻ او پر رسول دده ﴿محمد ﷺ﴾ باندي او پر هغه کتاب قرآن چه ټوټه ټوټه يي نازل کړي دي پر رسول خپل محمد ﷺ باندي او پر هغه کتاب باندي چه ټول يي په يوه پلا سره نازل کړي دي مخکي د دغه قرآنه څخه پر نورو رسولانو باندي او هر څوك چه کافر سي په الله ﷻ سره او کافر سي د ملايکو څخه د الله ﷻ او کافر سي د اسماني کتابو څخه د الله ﷻ او د رسولانو څخه د الله ﷻ او منکر سي د ورځي څخه د آخرت چه قيامت دي نو په تحقيق سره دغه شخص گمراه سوی دی په گمراهي لويه او ليري د حق څخه ددي معنی دا سوه هر څوك چه ايمان راوړي نو ضرور دی ورته چه د الله تعالی ﷻ پر ټولو احکامو او ارشاداتو باندي هم د زړه يقين ولري که د الله ﷻ تعالی د احکامو او ارشاداتو څخه پر يوه حکم هم يقين ونه کړي نو هغه مسلمان نه دي او تش د ژبي وينا او خبري د خولي هيڅ اعتبار نه لري دا خو ښکاره او هر چا ته معلومه ده لوي نعمت او مرحمت چه خداي تعالی ﷻ پر خپلو بندگانو باندي کړی دی هغه هدايت دی او ددوي زړونه او ځيگرونه يي واسلام ته خلاصول دي .لکه چه الله

تعالي ﷻ په قران کښي فرمايي ﴿افَمَنْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهُ لِلاِسْلاَمِ فَهُوَ عَلي نُوْرٍمِّنْ رَّبِهِ﴾الزمر، ايت ۲۲.
ايا پس هر څوك چي خلاص او پراخه کړي الله سينه د ده واسلام ته نو وي به دی په روښنايي کي دهدايت له طرفه څخه د رب خپل پس افسوس وهلاکت و خرابي ده هغو کسانو ته چه سخت وي زړونه ددوي له ذکرڅخه دالله ﷻ نو دغه کسان په ښکاره گمراهي کښي دي .يعني دواړه کله سره برابر کيداي سي .يو هغه چي الله ﷻ دهغه سينه او ځيگر داسلام دقبول دپاره خلاصه کړي وي .اودی داسلام په حقانيت کي هيڅ شك او شبه نلري.
حتي اهل الجنت به دخداي تعالي ﷻ حمد او ثنا وايي په جنت کي پر دغه نعمت باندي کوم چه خداي تعالي ﷻ ودوي ته دهغه تو فيق ورکړیووپه دنياکي چي د هغه په سبب خداي تعالي ﷻ داسي نعمتونه ورکړل، لکه چه الله تعالي ﷻ ددوي په باره کښي په قران کي داسي فرمايي: ﴿وَقَالُواالْحَمْدُللّه الّذي هَدَ انَالِهٰذَاوَمَاکُنَّا نَهْتَدي لَوْلاَ اَنْ هَدَانَا اللّٰهُ لَقَدْ جَائَتْ رُسُوْلُ رَبِّنَابِالْحَقِّ وَنُوْدُوااَنْ تِلْکُمُ الْجَنَّةُ اُوْرِثْتُمُوْهَابِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾
يعني حمد وثناءدي وي پاك رب ته چه موږ يي ودغي سمي لاري ته هدايت کړلوکه چيري ده هدايت او لار ښونه نواي راته کړي نو هيڅکله به موسمه لاره نواي پيدا کړي .دجانبه

دخداي‌ﷻ رسول‌ﷺ راته راغلی او موږ يي حق ته دعوت کړلو.بيا بۀ دغه جنتيانو ته ږغ او ندا وسي چه دغه جنت نور دهميشه دپاره ستاسو استو ګنځي ده په سبب دهغو ښو اعمالو چه تاسو په دنيا کښي کول .او خدايتعالي‌ﷻ موږلدينه بيره وي او راته فرمايي چه احتياط کوی خبر داره اوسی چه داخرت نعمتونه پري نږ دی په بدل کي ددنيوي نعمتو او دکافرانو ومشرکانوپه شاني کارونه ونکړی ،او راته فرمايي: ﴿وَلاَ تَكُونُواْمِنَ الْمُشْرِكِيْنَ﴾ يعني دکافرانو اومشرکانو په شاني مه کيږی .ددي ايت کريمه څخه دا هم راته معلومه سول چه يوه مسلمان ته نه ښايي چه دکفارو او مشرکانو په شاني دي سي .

دمسلمانانو خوراك ا وچښاك او لباس اوملبس ا وهر څه بايد دکفارو څخه جلا وي او برابر پر طريقه دشريعت اسلامي وي لکه څنګه چه حضرت محمدﷺ او اصحابواو سلفو صاليحينو کول .په بل ځای کښي اللهﷻ فرمايي: ﴿وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْاِيمَانِ فَقَدْحَبَطَ عَمَلَهُ وَهُوَ فِيْ الاخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ يعني که څوك کافر سي وروسته تر ايمان راوړلونو دده ټول اعمال حبطه او بيکاره سول او په اخيرت کي به دی دزيان کارانو څخه وي.

همدارنګه الله تعالي ﷻ په يوه بل ايت کي فرمايي: ﴿اِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْ اَحَدِهِمْ مِلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدٰى بِهٖ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيمٌ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ﴾ سورة العمران ايت ﴿٩١﴾
ژباړه بيشکه هغه کسان چي کافران سويدي او مړه سويدي پداسي حال کي چي دوي کافران وي نو له سره به قبول نسي ديوه ددوي څخه په ډکوالي دمځکي دسرو زرو څخه اګر که دوي خيرات وفديه کړي دغه ټوله سره زر هيڅ به قبول نسي ددغو څخه چي پر کفر باندي مړه سي سته دويته عذاب ډير سخت او درد ناکه او نسته دوي لره هيڅ مدد ګاران چه مرسته ورسره وکړي داسي نده لکه ددي دنيا حکومتونه چه دسرو او سپينوزرو په رشوت سره کارونه چلوي ، خو هلته په اخيرت کي يوازي دايمان دولت په کار راځي .فرض کړه که ديوه کافر سره دسرو زرودومره لوي لوي امبارونه پراته وي چه دهغو څخه دټولي مځکي مخ ډك سي بيا دي هغه ټوله خيرات کړي نو دغه ټول دالله ﷻ په دربار کي ديوي زري ارزښت هم نلري او نه هم په اخيرت کي ودته دداسي اعمالو څخه څه فايده رسيږي .ځکه چي دعمل روح ايمان دی .هر عمل چه دايمان څخه تش او خالي وي دهغه مړ عمل په شان بلل کيږي چه داخيرت په ابدي ژوندون کي هيڅ کار نه ورځخه اخستل کيږي، .دفديي او خيرات څخه مراد دادي يعني فرض کړه که په اخيرت کي

دکفارو سره هلته دومره مال ورسره وي او دي دخپل نورې څخه دا وغواړي چي خپل دغه مال ټول دفديي په ډول والله ﷻ ته ورکړي چه زما دغه مال واخله او ما پريږده بيا به هم ور څخه ونه منل سي ،همدارنگه الله ﷻ په بل ايت کي فرمايي: ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَى عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِنْ عَذَابِهَا كَذَٰلِكَ نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ﴾سورة الفاطر ،ايت ،۳۶،ژباړه:

هغه کسان چه کافران سويدي سته دويته اور ددوږخ حکم به ونکړه سي پر دوي باندي ددوهم مرگ چه بيا مړه سي او پر ارامه سي دعذاب څخه او نه به عذاب ور باندي لږ او سپک سي موږ داسي جزاء ور کوو وهر ناشکره او بي ايمانه ته ،کافران به په دوږخ کښي په زاريو مرگ غواړي مرگ به نوي چي ددوي وعذابو اوتکليفو ته خاتمه ورکړي او نه به يوه لحظه ددوي څخه عذاب کم او لږ سي :الله تعالي ﷻ فرمايي:﴿ موږ ناشکرانو او بي ايمانانو ته دغسي سزاوي ورکوو﴾

اوس چي موږ ته دکفر اوناشکرى سزا اوعذاب معلوم سو نو په همدي سبب وهر مسلمان ته لازمه اوضروري ده ،چه په معرفت سره دکفرځان سامبال او مسلح کړي اسباب ومقتضيات دکفر وپيژني او پوه سي چه د خولي څخه داسي

الفاظ ونه باسي چه په ځان به نه يي خبر او خپل ټول اعمال صالحه به يي له ميانه ځخه حبطه او تللي وي ملسمان لره ښايي چه په خپلو اقوالو او افعالو کښي ډير محتاط وي، ځو داسي خبره يا کار ورځخه ونه کړه سي چه اعتقاداً دی په کفر کي واچوي او د لاري ځخه د اسلام يي ليري او منحرف کړي او د ارتداد په توره او تياره کنده کي وغورځوي او د دنيا او آخرت نقصاني او تاواني سي او بيا به سخت پښيمانه وي هلته به بيا پښيماني او ندامت ورته هيڅ گټه نه رسوي،

موضوع د تکفير او ارتداد د اسلام ځخه يو لوي خطر ناکه او د زحمت ځخه ډك کار دی. ارتداد يوه داسي خطر ناکه شيله ده چه پخوا او اوس ډير کسان پکښي لويدلي او غرقاب سوي دي اوهم پکښي وليږي «الاعلام بقواطع الاسلام لابن الحجر الهيثمي احمد بن محمد» صفحه ٥

نن سبا و يوه داسي حالت او مرحلي ته زموږ ټولنه رسيدلي ده چه په يوه ډيره ناحقه او ناچيزه شي باندي د خولي ځخه داسي خبري باسي چه ځان د کفر و دلدل ته غورځوي چه بيا ورځخه يي د ځان خلاصول اسانه کار نه وي که هر ځومره د خلاصون تلاښ کوي خو دا دلدل يي نور هم کښته کشوي

يوه داسي ډله هم سته چه پر چا باندي ډير ژر د کفر اطلاق کوي په ډيره سادگي سره وايي بس خلاص کافر سوي يا پلانکی

کافر دی صرف خپل ځان د کفر او اسلام ټیکه دار بولي. هیڅ پر طریقه باندي د اسلام حکم نه کوي که څه هم هغه سړیدواړي کلیمي د شهادت هم وایي او لمونځ کوي او روژه نیسي او د اسلام ټول فرایض اجرا کوي. خو بیا هم هغه ټول شرایط د اسلام نه وي پر ځاي کړي په حدودو کښي د قرآن او احادیثو. د داسي کسانو حال داسي دی لکه د خوارجو نو هر څوك چه پر دغه لاري باندي رهي سي نو حال به یي د خوارجو وي.

بله ډله بیا داسي سته چه په دغه لاره کښي پراخي او تفریط کوي. دوي باالکل تکفیر نه مني دوي وایي که څوك کلیمه د شهادت وایي هغه ته هیڅ کله کافر نه ویل کیږي. بلکي وایي داسي سړي ته کافر ویل جایز او روا نه دي. ځکه اطلاق د کفر پر اعمالو باندي کیږي. بله لا دا چي دوي هیڅ څوك کافر نه بولي حتی مرتد هم کافر نه بولي او نه هغه څوك کافر بولي چه د نبوت دعوه کوي دوي د لمانځه پر وجوب ټینګار کوي په داسي چارو کښي په میانځ کي د علماؤ او د هغو کسانو چه د اسلام د دایري څخه خارج دي. څه فرق او خلاف نسته ﴿شرح العقیدة الطحاویه﴾ ص ٣٥٥-٣٥٧.

اما اهل سنت ته دي خداي تعالی خیر و هدایت ورپه برخه کړي کله چه د دوي اختلاف سي په حق کي نو دوي د خپل ثبوت

لپاره منګولي په قرآن او حديث باندي ټينګي کړي او د خپل دليل د اثبات لپاره ورڅخه کار اخلي دوي وايي چه مسلمان باالکل نه کافر کيږي او نه هم په ګناه کولو سره سړی کافر کيږي.

دا هم نه وايي چه تکفير معين غير ممکن دی او نه هم دا وايي چه تکفير باالعموم نسته بيله تحقيق څخه د شروطو د تکفير او انتفاء د موانعو په حق معين کښي. او اسلام په دي پوري هم نه موقوفه وي چه بايد په اثبات کي وصف د اسلام موجود وي چه هغه دا دي چه بايد په ظاهره هم په اسلام باندي پابنده وي.

يا داسي ثبوت بايد ولري چه دی په اسلام کښي داخل دی. بلکي وايي چه اهل قبله او موحدينو باندي بايد تل ښه ګومان وکړه سي. که هغه په اسلام کښي داخل وي يا غواړي چه و اسلام ته داخل سي او که څوك کفر وکړي او شروط د کفر هم پکښي پيدا سي او موانع پکښي نيستي وي بيا هم دوي يي تکفير تکفير نه بولي.

﴿ مجموع الفتاوي شيخ الاسلام ابن تميج ﴾ ج ٢٨ ص ٥٠٠ - ٥٠١ ،

د اهل سنتو پر دي باندي اتفاق دی پر قاعده عامه . حکم کوي پر دي باندي سړي کافر کیږي په عقیده او اقوالواوافعالو باندي چه په خپله مرضی باندي تعبیره وي.
لکه څنګه چه امام طحاوي ﷺ وایي اهل قبله ټول مسلمانان دي تر څو دوي د رسول اللهﷺ د اقوالو او افعالو قبلونکي وي. او د رسول الله ﷺ د هر قول او خبر تصدیق کوونکی وي.
او وایي اهل القبله په هره ګناه سره نه کافر کیږي تر څو دی هغه ګناه جایزه و حلاله ونه بولي او دا هم نه وایي چه د ګناه کاره و ایمان ته په ګناه کولو سره ضرر نه رسیږي.چه ګناه کوي .سړي دایمان څخه نه وزي مګر په سخت انکار سره ..
دغه قاعده دمهمو ظوابطو څخه دتکفیر شمیرل کیږي چه پدغه موضوع کښي څو ډوله مسئلي وجود لري .چه هره یوه یي ځان ته یو خاص بیان اوتفصیل لري خو دهري یوي ځانته بیانول به سخته وي .
دکتور محمد نعیم یاسین ،دغه مسایل پر څلورو قسمو باندي ویشلي دي،
اول ،هغه څوك کافر بلل کیږي چه دخداي تعالي دربوبیت څخه انکار او «نعوذوابالله» بد ورته ووایي .
دوهم،چه دخداي تعالي ﷻ نومونو او صفاتو ته بد وایي.

دريم. چه دخداي تعالي ﷻ والوهيت ته بد وايي ،
ځلورم، چه د رسالت څخه انكار وي .او هم بد ور باندي وايي ،
بيايي وفرمايل: .چه دغه ځلور سره انواع دكفر دي ،
داسي اقوال اوافعال اواعتقادات دشهادتينو دكليماتو دميانځه ورولوكښي پوره رول او حصه لري چي ويونكي اوكونكي يي ﴿نَعُوذُوا بِاالله﴾ داسلام او ايمانه څخه په وزي، ﴿شيخ الاسلام ابن التميمه﴾ ومذهب ته داهل سنتوپه باب دتكفير كي په دغو اقوالو سره ورته اشاره وكړل،اووايي، دكفر لفظ هغه ته ويل كيږي وچاته چي ويونكي يي په الفاظوسره دكفر تلفظ وكړي ،او دي فرمايي،كه چا داسي وويل: نوهغه كافر دي .ليكن دكفر حكم نكيږي پر شخص معين باندي تر څو پوري پر هغه باندي معين دليل او حجت دكفر نوي ورباندي ،لكه څنګه.چه الله تعالي په قران كښي فرمايي: ﴿اِنَّ الَّذِينَ يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتَامٰي ظُلْمًا اِنَّمَا يَاكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا﴾سورة النساء،ايت ١٠، يعني بيشكه هغه كسان چه خوري دوي مالونه ديتيمانو په ظلم وزور سره بيله اذن او اجازي څخه دشرعي بيله خبره اودليل څخه، داده چه خوري دوي او ډكوي دوي خپل نسونه له اوره څخه ددوږخ او ډير ژر به دوي داخل كړو واور ته

دد دوږخ ،همداشاني په ډيرو اياتوکښي دقران ديتيمانو داموالو په نسبت دراز راز احتياط کولو حکم سويدی .او ددوي په مال کي خيانت کول لويه گناد بلل سويده او ديتيم په مال کي پرخيانت کونکو باندي دسختو او شديدو وعيدونو بيان سوی دی چه لا نور هم ددي حکم تاکيد کوي او فرمايي: هر هغه څوك چه د يتيم مال بيله استحقاقه څخه خوري نو هغه خپل نس داورد څخه ده دوږخ ډکوي يعني مطلب داسو چه دداسي کار کونکي انجام به اخر اور د دوږخ وي ،

دا يو دهغه وعيدو څخه وو چي الله تعاليﷻ يي دخپل حکم دمنکرانو او نه منونکو سره کوي .همدا شاني ډير نور وعيدونه هم سته او هم حق دي .ليکن دا وعيد ديوه مشخصه شخص سره ندي اونه پر يوه معين شخص باندي چه اهل القبله وي چه هغه به حتما واورته داخليږي په کولو ددغه جرم او گناه .کيداي سي چه توبه وکاږي د گناه څخه يا يي الله تعالیﷻ په کومو مصايبو او غمو او زحمتو باندي اخته او مبتلا کړي چه د دغو گناهو څخه يي پاك کړي او سبب د شفاعت دده وگرځي

دا رنگه وايي. هغه اقوال چه ويونکی يي کافر دی هغه که څه هم د دلايلو او نصوصو څخه ناخبره وي.

يا نصوص او دلايل ورته رسيدلي وي دی په پوهيدلي نه وي يا په اثبات ورته رسيدلي نه وي دغه دليل او له دغه وجهي

څخه دی په شبهاتو کي لویدلي وي داسي کسان بیا الله تعالیﷻ معذوره بللي دي.

مذاهب د امامانو پر دغه نوع معین باندي بناء دي.

دغه امر د آخرت مور د دي څخه نه منع کوي چه داسي اشخاصو ته په دي دنیا کي سزا ور نه کړو او د گناهواو د بدعت څخه یي منع نه کړو او یا توبه په ونه کاړو یا یي و وژنو یا جنگ ور سره وکړو. کد چیري قول پخپله کفر وي او ده ته وویل سي چه دا کفر دی ویونکی هغه وخت ورته ویلای سي چه تا کفر وکړي چه پخپله شرطونه او دلایل د کفر ورته معلوم وي.

اوس مور ته ددي خبري څخه ښه واضیحه او معلومه سوه چه باید په دي خبره کي ډیر احتیاط وکړو چه چاته وایو ﴿نَعُوْذُوا بِا اللهِ﴾ ته کافر سوي یا دا دي د کفر خبره وکړل په دي کښي ډیري مهمي خبري اونقطي سته په امورو کښي د مکفیري او تکفیر په خبرو کښي باید جدي پاملرنه او احتیاط وکړه سي.

﴿اول امر﴾ ډیر داسي شیان او خبري سته چه د شهادتینو سره تناقض لري یا په خاطر د ایمان نه درلودلو په خدای تعالیﷻ باندي یا په درلودلو سره د متناقضي عقیدي پر اقوالو او افعالو د رسول الله ﷺ. نو پرهر عالم او پوه باندي واجبه او

لازمه ده چه هغه کسان چه دداسي دلایلو او نصوصو او وعیدو ځخه بي خبره وي پوه يي کړي.
او د وعید الهي ځخه يي وبیروي انواع او اقسام د کفر په تفصیل او واضیحه توګه سره ورته بیان کړي په اندازه د خپلي پوهي او علم چه دی يي لري د قرآن او حدیث ځخه دیته وایي بیان د دین او ﴿اَمرٌ بِالمَعرُوفِ اَو نَهيٌ عَنِ المُنكَرِ﴾ وکونکي ته ددي کار ډير لوي اجر او ثواب دي په نزد د خدای ﷻ که درلودنکي د خاص نیت وي.
﴿دوهم امر﴾ دغه اموري مکفره يو د بل ځخه جلا او علیحدة دي په قوت کښي د دلالت پر کفر باندي چه ځیني يي په کفر باندي په صریح عبارت سره دلالت کوي. او ځیني بیا دلالت نه کوي په صریح عبارت سره چه کفر نه ور ځخه لازمیږي. او ځیني بیا داسي دي چه پر کفر باندي دلالت کوي او په صحیح عبارت ورځخه کفر لازمیږي. دغه دریم قسم يي داسي دي چه لزوم يي نژدي ندي خو په لږ تامل او فکر کولو سره ورځخه فهمول کیدای سي او بل بیا داسي دي چه تر دغه هم لیري وي.
که په اول نوع کښي ولویدي نو شهادت د کفرورباندي کولی سو او چاته پکښي معذور هم نسو ویلای .غیر له هغه چا ځخه

چي په زړه کښي دداسي خبرو څخه بد يوسي صرف دايي دخولي خبري وي بيله اعتقاد څخه.
اوس به راسو ودوهم نوع ته ،هغه څوك چي دالوهيت خصايص داسي بولي يا داسي وايي چه په تحليل او تحريم کي دبندگانو حق دي چه کوم شي حلال او کوم شي حرام بولي.
او هغه څوك چه عالم قديم بولي نو ور باندي لازمه ده چه ووايي چه الله ﷻ شي ندي پيدا کړي او نه هم بله لار او تاء ويل لري دا داسي دي لکه کفر صريح دداسي خبرو کونکی ته معذور هم نه ويل کيږي،
او دهغه چا څخه چه داسي خبري کيږي يا داسي افعال ورڅخه صادريږي چه رضايت پر کفر صريح باندي وي دمثال په توگه هغه کسان چه دوجود څخه دخداي تعالي منکره وي او ناست مخاطب ورته ووايي چي رشتيا وايي ، ووايي ته پر حق يي ، نو دا نسو ويلای چه دلالت ده [illegible] ر باندي دمنکر ،
سبب دافعالو دکفر خو ډير دي .دا سي افعال دمعين شخص داقوالو څخه که څوك په يوه داسي کار کښي واقع سي چه په هغه سره و کفر ته ځي د کتلو د لاري يا نور داسي په داسي وخت کي نو و ډير احتياط ته ضرورت سته په وخت کي د

تطبيق پر يوه معين شخص باندي هر کله چه ددغه سړي څخه يو داسي کار صادرېږي په هغومره اندازه و احتياط ته ضرورت زيات لازمېږي چه احتياط وکړه سي.

اول بايد و ښکاره ظروفو او قراينوته وګورو دقوي دلايلو داسي کارونه وعامه خلقو ته نه پيښيږي .او داسي مسايل او قضاوات په دوايرو کښي داسلامي دولت بايد حل سي او هم به ډير معقول کار وي مخکي له دينه چه دناحقه مشاکلوسره لاس وګريوان سو.

پدي باره کي به دمثال په توګه سره ووايو ،هغه دا که يو سړي قران يا دقران يوه حصه په يوه نجس او مردار ځاي کي وغورځوي ..دغه کار بيله دي څخه چي وکونکي ته وګورو چه هغه څوك دي ؟

ټول علماؤ او فقهاؤپر دي باندي اتفاق کړيدي چه دا عمل دکف [illegible] چه دداسي کار کول دکلام الله ﷻ چه قران دي ده [illegible] استخفاف دي .که بل سړي دغه کار ويني او ورته ووايي چي ورروه داسي کار کول کفر دي .بلکي داسي نسي ورته ويلاي چه دا معين کفر دي ،

خو ښه به داوي چه دغه کار کونکي حد اقل دغه دوه کاره ور وښيي يا پخپله دغه کار کونکي پدغه سره پوه وي يعني دغه

شي چه دي يي په دغه نجاست کي غورځوي قران کلام الله ﷻ دي او دغه ځاي چه ده پکښي وغورځاوه نجس ومردار دی که چيري سړي پدغه پوهيدي چه قران بايد په داسي نجس ځاي کي ونه غورځول سي .خو بيا هم دي داسي ناوړه کار وکړي نو پر دغه باندي حکم دکفر کولاي سو ،او که بيا امي او ناپوه وي داسړي دومره جاهل وي چه په هيڅ نه پوهيږي چه زه څه شی غورځوم ،يا دغه غور ځونکي نابينا اوړوند وي نه وي خبرچه څه شی غورځوم ،پدي وخت کي ويلاي سو چه ددې شخص مقصد اوهدف تحقير اوسپکاوي دقران ندي ،دغه شخص معين ته شخص معذور ويلاي سو ،

نو په همدي سبب پر موږ باندي واجبه اولازمه ده چه دتکفير په باره کي ډير احتياط وکړل سي ،او دا په پټو سترگو او بيله علمي دليله څخه ونه وايوچه فلانکي کافر دي .يا کافر سو، ځکه په مذاهبو کښي داهل السنة تر هغه وخته وچاته کافر نسو ويلاي چه تر ځويي ټول شرطونه ښه په تحقيق سره ونه څيړل شي اوتر ځويي صريحه اراده دکفر نه وي کړي، مقصد او اصل ددوي دادي چه چاته صرف په احتمالي لفظ سره کافر نسو ويلاي .ځکه چي کفر نهايه دسزاء او عقو بت ده په گناه کي احتمال ته نهايه نسو ويلاي،﴿فتاوي تتار خانية لعلاء الانصاري﴾ ،ج ،٥ ،ص ٤٥٩،

علامة عالم العلاء الانصاري ،وايي چه بايد پوه سو چه که په مسئله کي وجوهات او دلايل وي چه په يوه سره سړی کافر کيږي او دليل يي دتکفير ممانعت کوي نو پر مفتي باندي لازم او ضروري ده چه هغه لاري او دليل ته مايله سي او غوره يي کړي چه په هغه سره منع دتکفير کيداى سي دپاره ددي چه پر مسلمان باندي بايد هميشه ښه گمان وکړه سي وروسته که نيت دويونکي داوجه وي چه منع دتکفير وکړي نو هغه مسلمان دي او که يي نيت دا وي چه وجوب دتکفير وکړي پدي وقت کښي بيا دمفتي فتوي څه نفع اوفايده نلري صرف بايد په توبه باندي يي امر کړي چه دخپل دغه حال څخه وگرځي بير ته دسره توبه وکړي اواسلام ته رجوع وکړي ،او دخپلي ښځي سره خپله نکاح تجديد او نوي کړي. «الفتاوي تتارخانيه» ج ٥ ،ص،٤٥٨.

دريم امر: دوه حکمونه لري چه پر بنده باندي دکفر حکم کوي .اول ،دنيوي حکم دي .چه استحقاق دمرتد دي په دنيا کي په ټولو هغه شرعي دلايلو سره داحکامو چه بايد پر ده باندي په ژوند کي ددي دنيا اجراء وتنفيذ کړه سي پر هغه طريقه باندي چه دانسان څخه صادريږي په ظاهري شکل سره .بيله دي څخه چه ومکوناتو دزړه وکتل سي .دمثال په ډول لکه دمرتد وژنه که توبه ونه کاږي او بيرته واسلام ته رجوع ونکړي .او بايد

دده او مابيني تر ميان جلا والي راسي .اودده مذبوحه کړه سوي حيوان حرام وبلل سي او نه هم ښځه په نکاح ورکړه سي .او داسي نوري چاري دمرتد سره کول ،چه دا دبندگانو کار دي .چي په دي دنيا کي پر يوه شخص معين باندي تطبيقيږي ،او ځيني داسي احکام دي چه خاص په امام يا حاکم پوري د وخت مربوط دي لکه دمرتد توبه کول يا دده وژنه ،

دوهم حکم يي ،اخروي حکم دي .چه هغه استحقاق دمرتد دي چه په اخرت کي به همیشه په اور ددوږخ کښي وي ،چه دا يو داسي حکم دي چه صادريږي پر فلا ني دفلاني پر زوي باندي چه هغه ددغه عقاب مستحق دي دا حکم پر ده باندي دجانبه څخه د﴿احكم الحاكمين سبحانه وتعالي﴾ دي،چه موږ ددنيا په ژوندون کښي داسي نسو کولاي او نه دکوم شخص معين په باره کښي علم وپوهه لرو .او نه هم اصلا عقاب ورکول دبندگانو کار دي او نه په دنيا کي داسي څوك سته چه يو شخص دي معين کړي چه دا به په اور ددوږخ کي وي او دا به په جنت کي وي غير له هغه چا څخه چه خداي تعالي ورته دغه علم ور کړي وي چه هغه دخداي تعا لي رسولان دي ،يا لکه خپله رسول اللهﷺ چه خداي تعا ليﷻ ورته دجنت زيري ورکړي وو .او يا هغه عشره ومبشره دي چي ورته دجنت زيري ورکړه سوي وو او هم خداي تعا ليﷻ په خپل کتاب کي دجنت

خبر ور کړیدي .یا هغه چه رسول اللهﷺ شاهدي ورکړیده چه دا به په اور کښې ددوږخ وي .لکه ابو لهب چه دده په باره کښې په قران کښې پوره سورت نازل سویدي په نامه سورة اللهب.

هو:موږ باید په اجمالي توګه سره داسي حکم وکړو او ووایو که څوك په خداي سره کافر سي او ددین څخه داسلام مرتد سي نو دهمیشه·دپاره به په اور کي ددوږخ وي او جنت ورباندي حرام دي دغه حد دي چه پر مسلمان باندي لازمیږي او هم باید پر دغه حد باندي ودریږي تجاوز او تیري ورڅخه ونکړي ، او که نه ورته باغي ﴿یاغي﴾ او معتدي ویل کیږي.

## د کفر الفاظ ﴿یا کفري خبري﴾

اوس چه پوه سولو چه شیخ العلامه بدرالرشید ﴿الرشیدي﴾ یو عالم او فقهي او حافظ الحدیث دي او د حنفي مذهب د لویو علماؤ څخه دي ده په ډیر کوشش او تلاښ سره داسي خبري را جمع کړي دي چه په هغه سره و کفر ته اشاره کیږي یا یي په ویلو سره انسان بیله دي څخه چه متوجه او خبر سي کفر به یي کړي وي یا به یوه داسي خبره ورڅخه سوي وي چه په هغه سره مسلمان کافر کیږي یا د کفر و درجي ته رسیږي. او د یوي لوي

گناه مرتکب گرځي. او ټول ښه او نيك اعمال به يي حبطه او د ميانه تللي وي په داسي حال کي چه دی په هيڅ خبر هم نه وي.
دا دي زه غواړم چه د داسي خبرو رموز او د پوټو خزانو کيلي او پټ رازونه يي وتاسو ته ووايم څو تاسي وکړای سي د داسي خبرو څخه ځانونه وساتي.
په فتاوی الطحاوي کي راغلي دي.
که څوك په ژبه سره کفر وکړي که څه هم زړه يي د ايمان څخه مطمئن وي کافر دي او په نزد د خداي تعالی مؤمن نه دي.لکه څنگه چه الله تعالیﷻ په قرآن کښي په سورت توبه کي فرمايي:﴿ وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ﴾ ايت ۶۵ التوبه .، يعني قسم دي که پوښتنه وکړي ته د دوي څخه چه تاسي ولي داسي مسخري کوي نو دوي به حتماً ووايي چه دا موږ محضي په مجلس او خبرو کښي مسخري کولي. خبره داسي وه د تبوك غزا ته د تللو په وخت کښي ځينو منافقانو د مسخرو او ټوکو په ډول داسي ؤ ويل: دغه سړي محمدﷺ ته وگوري چه د شام او روم د قصرونوا و ښارونو د فتح کولو خوبونه ويني. د روميانو سره جنگ کول د عربو سره جنگ بولي خو موږ يقين لرو چه صبا به ټول موږ د روميانو په مخ کښي لاس تړلي ولاړيو. دوي به په مسخرو او ټوکو سره ويل

دا زموږ قاريان صحابه رضي الله تعالى عنهم چي خيټه ور او بيريدونكي ا و ډارن او درواغجنان دي څنگه بۀ وكړاي سي چه د روميانو د منظمو او مسلحواو با تورو لښكرو سره وجنگيږي او. دوي به ويل كه چيري رسول اللهﷺ زموږ د دي خبرو په باره كښي راځخه پوښتنه وكړي نو موږ به ورته ووايو چه دا موږ په دي خاطر داسي خبري كولى چه مسخري او ساتيري وكړو او وقت او سفر را باندي لنډ كړو. نو خدايتعالى بيا و داسي كسانو ته د قرآن په ژبه فرمايي: ﴿قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ﴾ سورة التوبه﴿٦٥﴾

يعني ووايه اي محمده ﷺ دويته ايا تاسو په اللهﷻ او اياتو داللهﷻ اوپه رسول دالله ﷺ باندي مسخري او ټوكي كوي. ايا دساتيري اوټوكو او مسخرو اوساعت تيري ځاي هم دغه دي چه په اللهﷻ او رسولﷺ باندي او دده په احكامو باندي استهزاء اومسخرى وكړ ي ،پر الله تعالىﷻ او دالله تعالي پر رسولﷺ باندي ټوكي كول او داحكامو الهي وو سپكاوي كول. داسي شيان كه يوازي دمسخرو په ډول هم وسي لوي كفر دي،باالخصوص چه دمنافقانو دشرارتونو او باطيني پليتي او مرداري له امله كه داسي حركت صادر سي ،

همدارنگه ددي قول څخه دالله تعاليﷻ معلوميږي چي فرمايي: ﴿مَنْ كَفَرَ بِاللهِ مِنْ بَعْدِ ايمَانِه اِلا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌ بِالْايمَانِ وَلَكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ سورة النحل ايت﴿۱۰۶﴾

يعني هر څوك چه كافر سي وروسته تر ايمان راوړلوپر الله تعاليﷻ باندي نو غضب او قهر دالله تعاليﷻ دي پرده باندي، مگر هغه څوك چه زور ورباندي وكړه سي اومجبوراًدكفر كليمه ووايي حال داچي زړه دده مطمئن او ارام نيونكي وي په ايمان پوري ،ليكن هغه څوك چي ارته اوپراخه كړي په كفر سره سينه خپله يعني چه راضي سي ورباندي اعتقاداًنو پر دوي باندي دي غضب دطرفه څخه دخداي تعاليﷻ او سته دويته عذاب ډير لوي په سبب ددغه ارتداد دايمان څخه و كفر ته راسي چه اوس دغه ښه تشريح او وڅيړو هغه داسي يو هغه مجرمان دي چي دسلهاوو دلايلو او اياتونو په ليدلو سره هم يقين نكوي او نه يي هم يقين راځي ،مگر ددوي څخه ډير لوي مجرم هغه دي چه ديقين راوړلو او تسليم كولو وروسته دشيطاني شبهاتو او وسواسو څخه متاثره سي او دصداقت څخه انكار وكړي .لكه ﴿عبدالله بن ابي سرح﴾ چي دايمان دراوړلو څخه وروسته مرتد سو ﴿اَلْعَيَاذُبِاللهِ﴾دداسي كسانو سزاء خو قران وروسته فرمايي﴿پميانځ كي دتير سوي ايت چه

وئ ویل﴿ الا مَنْ اُکْرِہَ ﴾یعني سوا دهغه چاڅخه چي په زړه کي دکفر څخه بد راځي .دا یوه ضروري استثنایي وه چه وي فرمایل ،یعني که کوم مسلمان دزړه دکومي په صدق سره برابر پر قران باندي قایم وي او دیوي لحظي اولمحي له مخي هم ایماني روڼااو قلبي طمانیت او صداقت دده دزړه څخه لیري او بیل سوي نوي مگر تش په کوم خاص حالت کښي دکوم ډیر زور او جبر اوزبر دستي له وجهي مجبور او لا علاجه سيږ اودیوه شدید خوف او بیري له سببه دخپل ژوند دسا تلو په خاطر تش په خوله سره منکر سي یعني کومه کلیمه په خلاف داسلام ووایي ،خو پدي شرط چي پدغه وقت کي زړه داسلام څخه مطمئن وي او هیڅ رنگه شك وشبهه وترددیي په زړه کښي نوي بلکي ددغه خپلي ژبي په نسبت هم سخت نفرت اوکراهت ولري نو داسي شخص مرتد ندي بلکي خامخا سوچه مسلمان دی،

هو، لدینه لوي مقام او لوړه رتبه داده چه انسان مرگ قبول کړي خو دخپلي ژبي څخه داسي الفاظ ونه باسي چه په کي داسلام کراهت او نفرت وي لکه دغو مبارکانو چي مرگ قبول کړی خو داسلام کراهت یي ونکړی ،لکه حضرت بلال ،حضرت یاسر ،حضرت سمیه ،حضرت حبیب بن الانصاري ،حضرت عبدالله بن حذافه ،رضي الله عنهم اجمعین ،همدارنگه ډیر

واقعات دتاريخ او سيرت په معتبروكتابو كښې سته ،چه مونږ
يي داختصارپه اعتبار دلته دهغو ټولوواقعات او قصي نسو
ليکلاي ،ښه خو به داوي چه ددغو مطا لبودپوهيدلودپاره
تفسير دابن كثير ولوستل سي ،په ﴿خلاصةالفتاوي﴾ كښې
راځي كه دچا په زړه کي داسي خيال ور وګرځي چي دكفر
کلمات بايد ونه ويل سي او دداسي كفري خبروڅخه په پټه
اوښکاره كركه اونفرت وسي ،نوكه څه هم په خوله سره داسي
خبره وکړي يا يي ونکړي خو په زړه کي دده خوښه نوي او بد
يي ور څخه راځي نوداشخص مسلمان دی مطلقاً،
﴿خلاصة الفتاوي لطاهر بن احمد البخاري لوحه۳۵۴﴾

په همدي باره كښې دا حديث شريف هم راغلي دي چي
وايي ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَلَّذِي رَدَّ اَمْرَ الشَّيْطَانِ اِلَي الْوَسْوَسَه﴾ دا
حديث شريف ابو داود روايت كړيدی.چه روايت كوي دابن
عباس څخه چه الفاظ دحديث داسي دي چه وايي ﴿جَاءَ رَجُلَ
اِلَي النَّبِيْ صَلَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَالسَّلَمْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰه اِنَّ اَحَدَنَا
يَجِدُ فِي نَفْسِه يعْرِضُ بِشَيءِلا نْ يَكُوْنَ حَممَهُ اَحَبَّ اِلَيْه مِنْ اَنْ
يَتَكَلَّمَ بِه فَقَالَ، اَللّٰهُ اَكْبَرْ اَللّٰهُ اَكْبَرْ اَلْحَمْدُلِلّٰه اَلَّذِي رَدَّ كَيْدَهُ اِلَي
الْوَسْوَسَة﴾ يعني يو سړی ورسول الله ﷺ ته راغلی او ويي
ويل ،يا رسول اللهﷺ زمونږ ديوه په زړه کي يو شي وروګرځي

دومره يي خوښ سي چه وغواړي په هغه باره كي خبري وكړي رسول الله ﷺ وويل الله اكبر الله اكبر يعني لويي دي خداي ﷻ اوحمد وثنا دي وي خداي تعالي جل وعلي شانه ته چي مكر او فريب د شيطان يي په وسوسه سره بدل كړی،
همدا رنګه مسئله ده .

كه چا داسي عزم اوقصد وكړی چه زه به سل كاله بعد كافر كيږم ،بس په همدغه نيت كولو سره ځاي پر ځاي باندي كافر سو
﴿خلاصة الفتاوي لاحمد البخاري، لوحه نمبر ۴۵۴﴾
عيناًدغسي متن راغلي دی چه وجه او دليل يي په كتاب ﴿اضوء المعاني شرح بدء الاماني ﴾ كښي داسي راغلي دي .كه څوك داسي نيت وكړي چه زه به مرتد كيږم .بس په دغه نيت كولو سره مرتد سو كه څه هم دده نيت دستي وي يا ډېر وقت وروسته دارتداد نيت وي خو دی صرف په نيت كولو سره في الحال دايمان او دين الحق څخه په وزي ،كه څه هم قصد يي داستقبال دی .دا ځكه چه همیشه توب پرايمان يقين درلودل دواجباتو او ضرورياتو څخه دي مؤمن ته نه ښايي چه دايمان په باره كښي يوه لحظه هم دده يقين په لړزه اوپه شبهه كښي سي: لكه څنګه چي الله ﷻ په قران كريم كي فرمايي:

﴿يَا اَيُّهَاالَّذِينَ آمَنُواْ آمِنُواْ﴾ النساء ايت ۱۳۶. يعني ای هغه کسانو چه ايمان مو راوړيدي ثابت او خالص کړي تاسي يقين خپل پر اللهﷻ او پر رسول باندي دده ،مطلب داسو هر څوك چه ايمان راوړی نو ضروري دی ورته چه دالله تعاليﷻ پر ټولو احکامواو ارشاداتو باندي دزړه له کومي څخه يقين ولري او که دالله تعالي داحکامو او ارشاداتو څخه پر يوه حکم باندي هم ايمان ونلري په يقين سره نو هغه مسلمان ندي او تش دژبي او خولي وينا اواظهار کول هيڅ اعتبار نلری ،په اتفاق سره دټولو علماؤ ،

په نيت کولو سره چه زه به کافر کيږم سړی دملت اسلام څخه وزي او کافر کيږي .ځکه چه قصد دکفر منافي دتصديق دی او تصديق دميانه څخه وړي ،او دی پدغه قصد کولو سره په کفر راضي سو .رضا په کفر سره په خپله کفر دي، اجماعًاخلاف په کفر کښي د کفر دهغه بل چه په سبب او خاطر دزور او جبر دی نه پهِ دی سبب چه دی کفر په خپل زړه کښي ښه وبولي ،لکه چه شارح دقدسي وايي ،رضايت او خوښي په کفرسره کفر دی، پداسي حال کښي چه دا خبره پر خپل ځاي نده، ﴿ضوء المعالي شرح بدء الامالي )لوحه نمبر ۳﴾

لکه د مثال په توګه چه دغه اوس وخت ځیني جاهلان او ناپوهان وايي ،والله تر داسي اسلام خو کفر لابنه دی ﴿نَعُوْذُوْا بِاللهِ﴾که چیري دغه خبره دده دزړه دکومي څخه وي دغه سړي پدغه شاني خبرو سره کافر کیږي.

که چا دکفر صفت کاوه یا یي داسي خبري کولي چه هغه دکفر خبري وي او بل یوه په خوښي وخندا ورسره خندل داهم کفر دي یعني کافر سو په سبب داستهزاء اومسخروکولو په اسلام پوري او رضايت وخوشحالي کول په کفر سره کفر دی .

په ﴿خلاصةالفتاوي﴾ کي داحمد بخاري :صفحه :۳۵۴، کښي د الفاظو زیاتوب سویدی ،که دا خبره دخندا او مسخروپه شکل وي اورضایت په کفر سره وي :نو بیا خندا کونکي هم ورسره کافر دی ،

﴿فتاوي التتار خانية صفحة نمبر ۴۵۹،او ۴۶۰﴾

او که چا داسي وخندل چي دا ځومره جاهل او ناپوه دی یعني دده پر جهالت او نا پوهي باندي وخندل او دده په خبرو راضي نه وو نه کافر کیږي ځکه دلته دار ومدار مربوط په رضا پوري دي :او مسئله دخندا سره مقیده ده ځکه انسان هغه وخت خاندي چه راضي وي،

په مجمع الفتاوي كي داحمدبن محمدبن ابي بكر الحنفي كي راغلي دي،

كه چا دكفر خبري كولي او بل ورسره خندل .كافر سو مطلب دادی ده هم كفر وكړی مخكي له دي څخه چه ددغه مجلس څخه ولاړسي او دا مجلس او خبري بدي اومنفوري وبولي په داسي حالت كي بيا ددوي سره ندي شريك ،

﴿شيخ عالم بن العلأء الانصاري﴾ په خپله ﴿مجمع الفتاوي تتارخاني﴾ كنبي وايي كه څه هم دغه خبره يو واعظ ،يا مدرس ،يا مصنف وكړي او ده ته ناست خلق هم دده په خبره پو سي ټولو كفر وكړی او په گناه كي ورسره شريك دي ځكه دويته هيڅ عذر نسته كه څه هم دوي په كفر كي سره مختلف دي:

په محيط كي راغلي دي .او ددي خبري زياتوب يي پكښي كړي دی .كه چيري خلق دغه واعظ يا مدرس ته داغسي چوپ ناست وي وروسته تر كفري خبرو كولو څخه چوپ اوخاموش ناست وه نو دوي هم كفر وكړی .ځكه دغه سكوت او خاموشي ددوي رضا ده ور سره په خبرو كنبي ﴿فتاوي التتار خانية للشيخ عالم العلاءالانصاري﴾

كه چا پدي خاطر وخندل چه دا څومره جاهل اوبي عقل دی او دده دخبرو څخه يي تعجب وكړي نه كافر كيږي :ځكه چه مدار

دکفر په رضا پوري دی .اکثرالاوقات سړی هغه وخت خاندي چه یو شي یي خوښ سي اوورباندي راضي وي :
په مجمع الفتاوي کي داحمد بن محمد بن ابي بکر راغلي دی، او وايي که چا دکفر خبري کولی او یوه ورسره خندل دده د خبرو په سبب نو دی هم په کفر کي ورسره شریك سو :که څه هم داسي وویل چي فلانکي داسي ویل :نو ټول په کفر کي سره شریکان دي غیر له هغه چا څخه چه ددغه مجلس څخه دخبرو په اوریدلو سره ولاړ سو :نو دی په کفر کي نه ورسره شریکیږي ﴿فتاوي تتار الخانیه للشیخ العلاء الانصاري ،ج ،۵ ،ص ،۱۳۵﴾ همدارنگه دغه مسئله په شرح کي د﴿کنز الدقایق﴾ هم ذکر سویده په جلد ،۵ ،ص،۱۳۵، دارالمعرفة البیروت،
که کوم واعظ یا مدرس یا مصنف دکوم کتاب الفاظ دکفر وویله :یا یي دکتاب اللهﷻ او احادیثو نبویو سپکاوي کول او خلگ ورته ناست وه او هیڅ یي نه ویل :دوي ټول په کفر کي ورسره شریك دي ،ځکه چه دویته هیڅ عذر نسته .او که په کفر کښي ورسره مختلف سول او اختلاف یي ورسره شروع کړي ،بیا پر دوي باندي کفر نسته :اوکه چوپه خوله ورته ناست وه او دمتکلم وکفري خبروته یي غوږ نیولي وي نو دوي هم کفر وکړي ورسره شریکان دي ،

﴿فتاوي التتارالخانية﴾ وايي په ﴿جلد ۵ صفحه ۴۶۵﴾ دغه فتوی محموله پر علم باندي بولي يعني که دمجلس خلګ په دغه پوه وي پدی چه دغه خبري داواعظ کوي داکفر دي :

په محيط کي راځي چه انکار دمتواترو احاديثو څخه په شريعت کي کفر دی .دمثال په توګه ددي څخه انکار وکړی چه وريښمين لباس پر نارينه وو باندي حرام دي يعني دی يي حرام ونه بولي ،او يا دوترو او اضحيه څخه منکر سي دا کفر دی ،

په ﴿خلاصه کي دطاهر بن احمد البخاري ﴾کي راغلي دي چه دا مسئله مقيده په شريعت پوري ده هغه وخت سړی کافر کيږي چي دمتواترو احاديثو څخه په شريعت کي منکره سي نه په غير شريعت کي مثلا که سړي دسخاوت څخه دحاطم طايي او دشجاعت اوبهادري څخه دحضرت علي منکر سي يا نور داسي پدي سره سړی نه کافر کيږي :

شيخ علي القاري دغه مسئله په خپل کتاب ﴿شم العوارض في ذم الروافض لوحه ۴ ﴾کښي نوره هم واضيحه او روښانه کړيده فرمايي :تاسو ويني که څوك د سخاوت څخه دحاطم طايي او دعدالت څخه دنوشير وان عادل منکره سي نه کافر کيږي :نو متواتر اخبار هم داسي مثال لري او داسي نور :

خو پدی کښې وعلم او پوهي ته ضرورت حتمي دی چه سړی باید په دین پوه وي،
همدارنگه ﴿قاضي عیاض﴾ په بیان کي دحکم دانکار دمتواتروداسي فرمایي :چه دمتواترو څخه منکر نه کافر کیږي .که څوك دداسي تواتر څخه منکره سي چه هغه وشریعت او فرایضو ته ضرر اونقصان نه رسوي :نو کله چي شریعت ته دغسي انکار څه ضرر نه رسوي نو منکر ته یي کافر نه ویل کیږي :پدی هم باید ښه ځانونه پوه کړوچه مراد اومقصد دتواتر څخه تواتر معنوي دي نه تواتر لفظي لکه نه ثبوت دوریښمینو جامو ،او اصل دوترو او اضحیي .چه ددی تواتر درسول الله ﷺ څخه په مراتبو ثابت سویدی ،لکه په﴿ شرح نخبة﴾ کي چي یي تشریح اوبیان سویدی :
تواتر معنوي هغه دی چه معنی یي په تواتر سره ذکر سوي وي .بیله لفظ څخه .لکه ﴿رَفْعُ الْيَدَيْنِ﴾ یعني دلاسو پورته کول په دوعاء کښې :ددی مطلب دښه تشریح دپاره تدریب الدراوي ،په شرح کي ﴿التقریب النواوي دجلا الدین السیوطي وګوري ،ج،٢،ص،٣٦٧﴾ دمتواترو ځانګي دلته داسي دي :یابه متواتر وي لکه څنګه چي جماعت العلماؤ څخه روایت دي چه تصور او خیال ددرواغو هم نه ور باندي کیږي دداسي متواترو احادیثو څخه انکار کفر دي :دمشهورو علماؤ په قول متواتر

حديث هغه دی .چه مشهورو ثقاتوراويانوروايت کړي وي يو
ديوه څخه هغه ذبل څخه هغه بيا دبل څخه وروسته په يوه
اجماع سره دټولو وربانديِ اتفاق وي .ديوه هم وربانديِ گمان
دشك او دروغو نوي ،نو که څوك ددغسي متواترو احاديثو
څخه منکره سي کافر دی ،په اجماع دټولوپه نزد :
غير له عيسی ابن ابان څخه هغه يي کافر نه بولي بلکي گمراه
يي بولي ،عيسی ابن ابان اصلي نوم« ابو موسی عيسی ابن
ابان دي» دي لوي عالم او فقهي امام دی دملگروڅخه
د«محمدبن حسن الشيباني» دي ،ښه فقهي او داحاديثو حافظ
وو ،«قاضي ابو حا زم» وايي :ما دده په شاني حافظ او عالم په
ټول بغداد کي نه دي ليدلي دعمر تر اخيرو شيبو پوري
دبصري قاضي وو،دی وايي .دداسي حديث منکر کافر نه
بلکي گناه کاره اوگمراه يي بولي دداسي حديث منکر چه يوه
دبل څخه روايت کړي وي او تواتر يي نوي که څه هم دغه
حديث صحيح وي او که حسن وي :
حديث صحيح هغه دی چه دحديث سند اومسنديي داول څخه
صحيح اوثابت وي او هيڅ شاذا ومعلل نوي پکښي ،او حديث
حسن بيا هغه دی ،چه سند يي وعدل ته رسيږي په لږه اندازه
غير له شاذيت او علت څخه

په خلاصه کي د(طاهر بن محمد بخاري) ،راغلي دي :که چا يو حديث رد کړي او ورڅخه انکار سو ځيني مشايخ وايي کافر کيږي ،متاخرين علماء وايي هغه وخت کافر کيږي که حديث متواتر وو ،موږ وايو چه داخبره صحيح ده .که رد دحديث پر طريقه دسپکاوي او استحقار وو:

په (فتاوي الظهيرية)کښي راغلي دي که چا وويل چي روايت دی ،درسول الله ﷺ څخه چي هغه فرمايي ﴿مَابَيْنَ مِنبَرِي وَبَيْتِيْ ، وَمَابَيْنَ قَبْرِيْ وَمِنبَرِي رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضَةِ الْجَنَّةِ ﴾حديث متفق عليه دي ،په ځيني رواياتو کي بيا داسي راغلي دي دا حديث ،﴿مَابَيْنَ بَيْتِيْ وَمِنبَرِي رَوْضَةٌ مِنْ رِياضِ الْجَنَّةِ وَمِنبَرِي عَلَي حَوْضِيْ ﴾صحيح البخاري مع شرح الباري ج،٣،ص،٧٠،و،ج،۴،ص،٩٩) اوس به بيرته خپلي اولي خبري ته راسو ،دفتاوی الظهيرية ›يعني يوه سړي وويل چه رسول ﷺ ويلي دی چه زما دکور او منبر ،يا زما دقبر او منبر تر ميان دجنت باغچه ده ،بل سړي وويل چه زه خومنبر اوقبر وينم خو بل شي نه وينم ،نو دغه سړي کفر وکړي :ځکه دده دغه خبره محموله ده پر استهزاء او مسخروا وانکارباندي :دده ددی خبري څخه معلومه سول چي دی مؤمن پر امورو غيبيو باندي ندی ؟

قرطبي وايي :غيب هغه دی چه رسول الله ﷺ ديوه شي په باره كښي خبره كوي او عقل وهغه ته نه رسيږي :لکه علامي دقيامت ،عذاب دقبر ،او پسله مرگه را پاڅيدل په ورځ دحشر کي ،مسلمان ته لازمه ده څنګه چي پر احوال عيني باندي يقين او ايمان لري همدغه شاني بايد پر اموري غيبي باندي هم ايمان ولري ،

په محيط كښي راځي كه چا نه غوښتل چه نبي ته ښکنځل وکړي او هم يي دغه كار بد ګڼي خو ښکنځل يي وکړل يا ور څخه وسول .وروسته يي وويل :والله فکر مي نه وو .دا کار راڅخه وسو او ډير بد کار مي وکړي او پر خپله دغه وينا باندي ډير پښيمانه يم هيڅ راضي نه يم ،نو دغه سړي ندي كافر :داداسي مثال لري لکه دهغه چاچي کفر پر خداي تعالي باندي ډير بد بولی ،خو بيا يوه خبره ورڅخه وسي دكفر خو زړه يي پر ايمان ټينګ اومطمئن وي،

که دچا داسي خيال سو چه ويوه انصاري سړي ته ښکنځل وکړي چه دهغه نوم محمد دی نه کافر کيږي ځکه دده نيت خو دغه نصراني سړی وو :او که يي په نيت کي دغه نصراني وو چه نوم يي محمد دي چه ښکنځل ورته وکړي مګر ني ورته وکړل سره ددغه نيته يي ورسول ﷺ ته ښکنځل وکړل

کافرکیږي په قضاء سره چه دده او الله تر میان ده څکه ده ونبيﷺ ته ښکنځل وکړل ،حال داچي ده کولاي سوای چه دا کار ونکړي :په ښکنځلو سره وبل محمد ته چه دده په زړه کښي وو ،دا مسئله «اشیخ العالم بن العلاء الانصاري» راوړیده په «فتاوي التتار الخانیة کښي ،ج،۵ ،ص،۴۸۰»اوهم یي دا خبره کړیده چه ونبي ته ښکنځل کول په دري سببه بد دي ،او فرمایي:که چا دا بده ګڼل چه «نَعُوذُوابِاالله»چه ومحمدﷺ ته ښکنځل وکړي دا هم پر دري ډوله دي،یو داچي ووایي والله هیڅ مي فکرمي نه وو او زه پر خپله دغه خبره ډیر پښیمانه یم او هیڅ په راضي نه یم .او ډیر بد کار راڅخه وسو یا نورو خطا ایستلم دي کار ته یي مجبوره کړم .نو په دغه حالت کي نه کافر کیږي :دا پر هغه باندي قیاس دی چه دچا څخه په زور او جبر کفري خبري وکړه سي :خو دده زړه دایمان څخه ډك اومطمئن وي ،.

دوهم سبب، دادی چه ووایي زما په خیال کي هغه فلانکي نصراني وو چه دهغه نوم هم محمد دی غوښتل مي وهغه ته ښکنځل وکړم دا هم نه کافر کیږي :

دریم سبب ،دادی چه ووایي زما په خیال کي هغه فلاني نصراني محمد وو چه ښکنځل ورته وکړم خو وهغه نصراني ته مي ونکړل ومحمدﷺ ته مي ښکنځل وکړل .یا داسي ووایي

:چه هر محمد نامي ته مي ښکنځل وکړل پدغه سبب کافر کيږي په قضا په ما بين دده او رب يي ،
او پدغه مسئله کښي دا هم سته ،که دده په خيال کي بل محمد نوي دغه ښکنځل ورته ډير بد ښکاره سول او بديي راغلل چه څومره بد او منفور کار مي وکړي ،نو نه کافر کيږي ليکن بايد وده ته سخته سزا په وهلو سره ورکړه سي ولو که ودرجي ته دقتل هم ورسيږي.پدی شرط چه هغه بد وړونکي ددی خبري قادر وي.
هغه څوك چه دکفر الفاظ ووايي او بيا پر خپلو کفري خبرو باندي پښيمانه وي .نو دغه ته بايد داسي سزاء ورکړه سي چه طاقت پر سا وي او دوژلو بيره يي نه وي پکښي چه ددغه وهلو څخه به مړ او هلاك سي .خو دا ضروري ده بايد سخت وبيره ول سي .چه بيا داسي ناوړه کفري الفاظ ونه وايي لکه وهل.سخت عذاب ور کول ،سخت ملامتول ، اړيکي دوستانه ورسره شکول ،او ورته وويل سي که بيا داسي وکړي نو حتماً به دي په اورکي وسوځوو ،خو وژل يي په اتفاق دعلماؤ بد ګڼل سويدی ،
«قرطبي» وايي :په اجماع سره داهل العلم که څوك ددغه کفري الفاظو ويونکی دعذاب ورکولو په وخت کي ووژني هم پر ده

باندي څه ګناه نسته ،خو ماینه باید ورڅخه جلا نکړل سي :او نه هم باید پر ده باندي حکم دکافر وکړه سي ،
او ﴿محمد بن الحسن الفقهي﴾ورڅخه خلاف دی .دی فرمایي: که چا په ښکاره او ظاهره سره کفر اوشرك وکړي .نومر تد سو دده حال نور دده او خدای تعالیﷻ تر میان دی ،شرعاً ښځه یي باید ورڅخه لیري کړه سي او هم پسله مرګه لمونځ ورنکړه سي او نه دخپل مسلمان پلار میراث وړاي سي ،دښه معلومات او تشریح په خاطر ﴿جامع الاحکام القران، وګوري :ج،۱،ص،۱۸۲﴾او هم دغه موضوع په تفسیر الخازن کي راغلي ده چه مسمي په کتاب ﴿التاویل في معاني التنزیل﴾ کي د﴿علاءالدین بغدادي﴾ راغلي ده په ،ج،۳وص،۱۲۶،چاپ ده دارالفکر دی ،

په خلاصه کي روایت دی دامام ابي یوسف څخه ،دی فرمایي :یو سړی وخلیفه هارون الرشید ته راغلي پر سترخان باندي د ډوډي خوړولو په وخت کي کدو راوړل سو دغه سړي ویل درسول الله ﷺ دکدو خوړل خوښ وه ، زما خو دکدو خوړل بیخي ندي خوښ :ابي یوسف چي ددربار قاضي وو فوراً یي امر وکړي چه یو تغر او توره راوړي دا سړي وژنم په سبب دکفر کولو ددي امر په اوریدلو سره سړي وویل ،﴿اَسْتَغْفِرُاللّٰهِ﴾

مما ذكر ته ،يعني زما توبه ده له هغه څخه چه ما وويل :او هم
دخدای تعالیﷻ څخه دهر هغه شی بخښنه غواړم چه په هغه
سره کفر واجبيږي ،بيا يي په لوړ اواز سره وويل: «أَشْهَدُ اَنّ لا
الٰهَ الا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنّ مُحَمّداًعَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ » وروسته تر دغه
اَقرار کولو يي پريښودي او قتل يي نکړی :
راسي چه ابي يوسف درته معرفي کړم چه امام ابي يو سف
څوك دی ،دده اصلي نوم «يعقوب بن ابراهيم بن حبيب
الانصاري البغدادي» دی ،لقب يي ابي يوسف دی ،ابي يوسف
دامام ابو حنيفه ملګري او شاګرد وو :اول شخص دی چه
مذهب يي نشر کړي .او دامام ابو حنيفه دتکړه وو ملګرواو
اصحابو څخه وو،
نوموړي لوي فقيه عالم او دنبوي احاديثو حافظ وو ،په کال
يو زر ودير لس سپوږ ميز هجري کښي په کوفه کي زيږيدلي
دي ،هلته يي دفقهي او احاديثوتعليم وکړی ، وروسته دامام
ابو حنيفه دنژدی ملګرو او همراهانو څخه سو :بيا دمهدي
،او،هادي ،هارون الرشيد په زمانو کښي دبغداد قاضي
القضاة وو ،دی اولين شخص دی چه دقاضي القضاة پنامه
سره ياد کړه سو او هم دی اولين سړی دی چه پر اصولو دامام
ابو حنيفه يي کتابونه تصنيف کړل :ابي يوسف په علم تفسير

كي هم دلوي پوهي او ذكاوت درلو دنكى وو ،او خپل هم ډير تصانيف لري ،

اوس چه تاسو امام ابي يوسف وپيژندی بيرته به خپلي لوړي ذكر سوي مسئلى ته ولاړ سو ،هغه داچي كه چا په طريقه دسپكاوي اواستخفاف دا خبره وكړل يعني زما داشي ندي خوښ كه څه هم درسول ﷺ خوښ وو :دا خبره داستحقار ده سړي په كافر كيږي :

خو دطبيعت كراهت او ناخوښي پدغه مسئله كښي نده شامله ځكه دا لاندي تر اعمالو اختياريه وو ده په قواعدو شرعيه وو كښي څوك نه په مكلف كيږي ،

خو ښه به داوي كه دچا ديو شي خوړل خوښ وي ودي خوري اوكه يي خوښ نوي بيله كراهته څخه دي ولاړ سي پريديږدي او عيب دي نه پر وايي :ځكه يوه انسان ته نه ښايي چه دالله تعالي په نعمتو كي عيبونه ولټوي يابد ورباندي ووايي،ځكه رسول ﷺ به هم داسي كول كه به يي شي خوښ وو نو هغه به يي خوړي او كه به يي خوښ نه وو پريښودي ئي:

﴿يادونه﴾

متل دي ته وايي :چه دخبري څخه خبره يا ديږي :وروښو زموږ په كوروكښي كله نا كله دكډو سالن پخوي نو ځيني ځوانان يي نه

خوري هغه بل ورته وايي :ويخوره کله و په نس کي دخداي تعالي ﷻ ثنا وايي :دا ځوان په مسخروورته وايي :چه قران ختموي لا يي هم نه خورم :دادي روښانه او معلومه وي چي دغه سړی دقران او ثناء الهي سپکاوي يي وکړل :ودغه ته الفاظ الکفر ويل کيږي ،نو ګرانو عزيزانو لوستونکو بايد دخپلو خبرو سره ډير احتياط وکړه سي ،ژباړونکي ،

په ﴿خلاصه او اجناس کي د شيخ الامام ابي عباس احمد بن محمد الناطقي الحنفي﴾ کي راغلی دی چه امام ابو حنيفه وايي: چه درود ويل نشته غيرله نبيانو او ملايکو څخه پر بل چا که چا بيله دغو دوو ډلو څخه چه هغه نبيان او ملايکي دي پر بل چا درود ووايه نوهغه ﴿غلو﴾ وکړل يعني د حدودو څخه يي تجاوز وکړي.

غلو کول د شيعه ګانو کار دي هغه چه موږ يي روافض بولو.

راسي چه د شيعه ګانو او روافضو تعريف درته وکړم، شيعه ګان هغه دي چه د حضرت علی ﴿رض﴾ سره يي مشايعت کړي وو باالخصوص پر امامت او وصيت باندي ددوي په نزد غير له حضرت علی او دده د اولادي څخه بل څوك د امامت مستحق نه دی او د خلافت په باره کښي دوي وايي چه رسول الله ﷺ وده ته د خلافت وصيت کړي وو ﴿په پټه يا ښکاره﴾ او

دوي وايي چه امامت بايد هيڅ کله د حضرت علی ﴿رض﴾ د اولادي څخه ونه و زي: او که څوك امامت ددوي د لاسه څخه وباسي نو د آل رسول ﷺ سره يي ظلم وکړي: دا هم بايد درته ووايم چه شيعه‌گان ډيري فريقي لري.

د ډير ښه معلومات دپاره د دوي په باره کښي دغه کتابونه ولولي لکه ﴿ مقالات الاسلامين للاشعري﴾ جلد ۱ صفحه ۶۵ ﴿تحقيق محي الدين عبدالحميد مکتبة النهضة المصريه﴾ چاپ ۱۳۸۹ ه‍ ق.

همدارنگه ډير نور کتابونه سته چه د دوي په باره کښي ښه معلومات درکولای سي:.

اوس به د روافضو په باره کښي معلومات درکړم، روافض هم هغه کسان دي چه په حب د حضرت علی کښي غلو او د حده تجاوزات يي کړي دي. او د جناب حضرت ابو بکر او حضرت عمر، و عثمان، و معاويه او د بي بي عايشي سره بغض او عداوت کوي. او همدارنگه د نورو اصحابو سره دښمني و حسد او بغض لري. او سبب د روافضو د نومولو يي دادی چه يوه ورځ زيد بن علی بن الحسين بن علی رضي الله تعالی عنهم اجمعين دوي د لعنت ويلو څخه پر ابو بکر او حضرت عمر رضي الله عنهما منع کول او ورته يي وويل: چه

دوي دواړه په مثال د وزيرانو زما د نيكه محمد ﷺ دي نو دوي دا خبره نه ومنل ورڅخه ولاړل تاسو ته دي معلومه وي چه رفض و نه منلو ته وايي.
او ځيني وايي په دی سبب روافض ورته وايي چه. دوي امامت د حضرت ابو بكر او عمر ونه مانه نو دوي په انكار د امامت دين قبول نكړي.اوځان ته ئي يوه جلاطريقه غوره كړل،
او حكم د سلام بياداسي نه دی شايد وجه او سبب يي دا وي چه دا د اسلام يوه تحيه او تحفه ده. فرق نسته په دی كښي چه داسي وويل سي چه ﴿اَلسّلامُ عَلَيْهِ﴾ يا﴾ وَعَلَيْهِ السّلامُ﴾او دا خبره صحيح نده چه ځيني وايي على عليه السلام ويل د شعايرو څخه د اهل بدعت دي.
﴿مختار الصحاح لزين الدين الرازي﴾ صفحه ۴۳ ، ۴۴

## فصل په باره كښي د قرآن او لمونځ

په ﴿فتاوي الظهيرية﴾ كي راځي، هغه كسان كفار دي چه وايي قرآن جسم دی چه نوشته سي او عرض دی چه وويل سي.
يعني كه چا وويل چه قرآن جسم دی يا عرض دی او په دی خبره سره يي د زړه يقين هم وي كافر كيږي. دا ځكه جسم يو جوهر دی قابل د ابعادثلاثه وو او د ميانځه وړلودی: او ځيني وايي

جسم يو مركب دی جوړ سوي د جوهر څخه، تعريفات ﴿جرماني﴾،ص ۷۶، فصل د ملل او هواء وګوری،
او عرض: يو داسي شي دی چه احتياج لري وځاي ته چه پکښي کښېښنودل سي لکه رنګ چه محتاج دی په وجود کښي وجسم ته چه هلته حل سي او دده شکل واخلي.
اعراض پر دوه ډوله دي په خپله ذات يا اصل دده چه په وجود کښي موجود دي لکه سپين والي او تورواليي او دوهم نوع غير قابل الذات دي چه دده اجزاء په وجود کښي نه سره جمع کيږي، لکه حرکت او سکوت، التعريفات الجرجاني.ص ۱۴۸
﴿بدر الدين العيني﴾ دا مسئله په خپل قول داسي تحليلوي.
يجب الكفر النجارية في قولهم
يَقُولُ انَّ الْقُرآنَ جِسْمٌ اِذَا كُتِبَ وَعَرْضٌ اِذَا قُرِئَ﴾ المسائل ﴿البدريه المنتخبة﴾ من الفتاوي الظهيرية، لوحه ۱۲۶ .ژباره نجاريه په خپل دی قول کي کفر ورباندي واجبيږي په داسي حال کي چه ووايي: قرآن جسم دی که نوشته وی او عرض دی که ويل کيدي.
دا مسئله د لوي وسعت او پراخي درلودنکی ده که غواړي موضوع دلته وڅيړو نو مقاله به مو ډيره اوږده سي. هيله ده چه دغه کتابو ته مراجعه وسي. کلام ابن الخرم

﴿فصل الملل والا هواء والنمل ج ۲ ص ۲۶۲﴾ او نور مقالات الاسلامیین الاشعري.
په خلاصه کښې راځي: که چا قرآن د ډول یا نل سره وایه کافر کیږي همدارنګه ذکر د خدایﷻ او نعت د محمدﷺ ویل د سازواو سرود سره یا د ډول او نل سره کفر دی ځکه چه په دغه کښې استخفاف او سپکاوي د قرآن او ذکر الله دي،
﴿ خلاصة الفتاوي لطاهربن احمد البخاري لوحه ۳۵۷﴾ ده او هم په ﴿فتاوي﴾ کښې د ﴿عالم بن العلاء، التتار خانیه﴾ راغلی ده په ج ۵ ص ۴۹۱، او په جاشیه کښې د﴿ردالمختار ﴾ ج ۴ ص ۲۵۹ کښې یوازي ذکر د قضیب یعني نل سویدي.
چکچکي کول پر ذکر الهي باندي کفر دی ،یعني یو ځای خلګ ناست وه ذکر یي کاوه کله چه دذکر څخه خلاص سول نورو ناستو خلګو ور باندي چکچکي وکړلی. دی خلګو کفر وکړي ځکه دا فعل دافعالو څخه دکفارو دي او هم استخفاف او سپکوالي دذکر الهي دي،
که څوك په یوه کتاب سره دکتابو دخداي تعالي منکره سو او انکار یي وکړي ورڅخه ،یا یي پر یوه کتاب دکتابو څخه دخدای تعالی ایمان نه در لودي یا دیو ه وعید الهي څخه منکره سي ،یا یو حدیث

درسول اللهﷺ ونه مني .يايي درواغ وبولي ،کافر کيږي،
﴿خلاصة الطاهر بن احمد البخاري﴾لوحه نمبر،۳۵۵،
دا ښکاره خبره ده او په حکم کښي هيڅ خلاف نسته .هغه سړی کافر دی چه دعذاب څخه دقبر ،قيامت اوتول وترازو ،او دځکندن څخه منکره سي ،او ځيني علماؤ دصراط اوميزان څخه منکره هم کافر بللي دي ﴿عالم بن العلاء الانصاري﴾ په خپله ﴿فتاوي تتارخانية﴾ جلد۵ صفحه۵۰۰ کښي په واضحه توگه سره ذکر سوی ده چه په انکار د قيامت د ورځي سړی کافر کيږي. همدارنگه په انکار د حشر د اجسادو کافر کيږي.چه ورته يوم البعثت وايي،
يعني که څوك د يوم الحشر څخه منکر سي هغه کافر دی.
مگر معتزله وايي: په انکار د صراط او ميزان سړی نه کافر کيږي، دوي وايي د صراط او ميزان منکر د نورو مبتديعينو په شاني دي لکه څنگه چه مبتديعين نه کافران کيږي په بدعت کولو سره.
همدارنگه معتزله منکر د جنت او دوږخ هم کافر نه بولي، ځکه معتزله خپله د جنت او دوږخ څخه منکره دي. حال دا چي وجود د جنت او دوږخ په احاديثو متواترو او قطعي دلايلو سره ثابت دي نو کاذب يي حتما کافر بللی سو، ﴿الاعلام بقواطع الاسلام﴾

صفحه ۶۷ او شفاء د قاضي عیاض په ډیر تشریح سره دا موضوع په خپل کتاب جلد ۲ صفحه ۲۹۰ کي څیړلي ده.
شاید چه جنت او دوږخ دوي عطفوي پر خوښیو او غمو باندي، معتزله وایي: نه عذاب د قبر سته نه صراط او تول او ترازو سته دوي وایي د دغو په انکار سره سړی نه کافر کیږي حال دا چه ټول اهل سنت معتزله کفار نه بولي بلکي اهل توحید یي بولي،
﴿الشفاء للقاضي عیاض﴾ جلد ۲ صفحه ۲۹۴ - ۲۹۵، و شرح ﴿الشفاء للعلي القاري﴾ جلد ۲ صفحه ۵۳۳او ۵۳۴،
قدرمنو لوستونکو راسي چه اوس معتزله در وښیم چه معتزله څوك او ولي ورته معتزله وایي؟ معتزله لفظ د اعتزال څخه اخستل سوي دي اعتزال وایي پریښودلو ته، دوي اصحاب التوحید دي خدایﷻ یو بولي، څني دوي ته قدریه، عدلیه، هم وایي په وخت د راتلو او ظهور کښي یي اختلاف دي، څني وایي چه دوي په قوم کښي د حضرت علی ابن ابي طالب را ښکاره سول، کله چه حضرت حسن بن علی خلافت و معاویه بن ابي سفیان ته پریښودي نو دوي هم سیاست پریښودي او عقایدو ته ولاړل، او ډیر علماء پر دي باندي متفق دي چه ددوي مشر واصل بن عطاء او عمرو بن عبید او

نور ددوئ ملګري دي، او عقيده د معتزلوو پر پنځه اصولو ده، چه هغه، توحيد، عدل، منزله بين المنزلتين ، اثبات الوعيد، امر باالمعروف و نهي عن المنکر. معتزله پر شلو ډلو باندي تقسيم سوي دي، هره ډله بله کافره بولي.
﴿مقالات الاسلامين للاشعري﴾ صفحه ۲۳۷ او ۲۳۸ ﴿تاريخ مذاهب الاسلاميه لمحمد ابي زهره﴾ صفحه ۱۲۴او ۱۵۹
که چا داسي وويل نه يم خبر ،يا نه پوهيږم خداي تعالي ولي دغه په قران کښي ذکر کړيدي :پخپله دغه وينا سره کافر کيږي. ،شرط دادي که يي دغه خبره پر طريقه دانکار يا استخفاف وکړل ،نو ور باندي کفر لازميږي ،او که پوښتنه يي کول دحکمت چه پدی کښي څه حکمت دي ،بيا پروا نلري
﴿فوزالنجاة لابن المسکوبه ابي علي الرازي احمد بن محمد﴾ متوفي سنة .۴۲۱ هجري.
په محيط کښي دامام فضلي څخه پوښتنه وسول .
که چا ﴿ضاد﴾په ظاء سره تلفظ کاوه او يا داصحاب الجنة پر ځاي يي اصحاب النار وايه يا پر عکس ددغه نو لمونځ او امامت يي ندي روا ،او په قصداً ويلو سره کافر کيږي ،که چا قصداً داسي کول په کفر کي هيڅ شك او خبره نسته ،که څه هم

په تبدیل دضاد ،په ظاء، سره یا داهل الجنت پر ځاي اهل النار ویل : پدي کښي ډیر بحث او کلام ته ضرورت سته ،
محیط د﴿محمد بن فضل ابوبکر الکماري﴾ ،له تصنیفاتو څخه دی چه ډیر لوي عالم او جلیل القدره شیخ وو دده روایتونه دښه اعتماد وړدي قاضي خان دي ډیر ښه عالم اومدرس بللي دی ﴿فتاوي دمذهب الحنفي﴾ ده لیکلي ده،
په یتمیةالفتاوي کښي راځي: که چا دقران یا مسجد سپکاوي وکړل یا دداسي نورو شیانو سپکاوي یي وکړل چه شرع ورته قدر او منزلت ورکړي وي ،یا چا پښه په خاطر دسپکاوي اواستخفاف پر قران باندي کښیښودل ،کافر سو،
نوټ ،یو جزء یا یوه ورقه یا څو توري دقران هم حکم دقران لري ،
که چاته وویل سي،ولي قران نه وایي؟ یا ولي ډیر قران نه وایي؟که دغه سړي وویل :نور دقران دویلو څخه موړسوم :یا ووایي .چه ور څخه په تنګ سولم ،یا ووایي : چه دقران دویلو څخه مي نور زړه تور سو،او بد مي راغلل ،یا دقران دکوم ایت څخه منکره سي یا ددي څخه منکره سي چه معوذتین دقران څخه ندي.
﴿نظام الدین بن علي القرغاني﴾ دجواهرالفقه مصنف وایي نه کافر کیږي ،که کفر ته مایل نه وو ،او ځیني متاخرین وایي چه

مطلقاً کافر کيږي که کفر ته مايل وي يا نه وي ،خو شيخ بن العلاء الانصاري وايي چه اوله خبره صحيح ده ،دی وايي دمعوذتينو منکر نه کافر کيږي که مايل نه وي وکفر ته ،ځکه اجماع دمتاخرينو خلاف دمتقدمينو له ميانه څخه نه وړي ،په نزد دامام ابو حنيفه اوامام ابو يوسف، ﴿فتاوي التتارالخانية﴾ ،جلد ۵ ص ۴۹۰ او ﴿البحرالرايق لا بن النجم﴾ ج ۵ ص ۱۳۱

که څوك دقران څخه يادیوه سورت څخه دقران يا ديوه ايت څخه منکره سو يا يي داسي ناوړه خبري پکښي وکړلي :يا يي وويل،چه دا دقران څخه ندي ،کافر سو :پداسي حال کي چه هغه په اجماع سره دقران څخه وي :لکه ﴿بسم الله﴾ په سورة النمل کښي :

په خلاف د﴿بسم الله﴾ چه دهر سورت په سر کښي ده ،ځکه چي دعلماؤ اختلاف دي په دغه کښي ځيني وايي :چه دسورتونو په سر کښي ﴿بسم الله﴾ دقران څخه ده ،او بله لويه ډله وديته تللي ده جه دا دقران څخه نده .او بله ډله وايي :چه ﴿بسم الله﴾ دقران څخه ده په هر ځاي کښي دسورتونو په سر کي غير له سورت توبي څخه دامام مالك رحمةالله عليه په نزد ﴿بسم الله﴾ دقران څخه نده .او امام شافعي وايي :چه ﴿بسم الله﴾ دقران څخه ده ،او امام ابوحنيفه ﴿رح﴾ او دده دمذهب محققين وايي

چه ﴿بسم الله﴾ دقران يو مستقل ايت دي چه دسورتونو دفصل دپاره را نازل سويدي ،

كه يو چا دقران تلاوت كاوه او بل چا په مسخرو ورته وويل ،چه دا قران دفلانكي نغمي په مقام كنبي وايي :كفر يي وكړي ﴿زبدة الفتاوي﴾ لوحه ۳۶۵

په قران باندي خندل او مسخري كول كفر دی ،په خلاف دهغه چا چه په قاري پوري وخاندی ،يعني مطلب يي دقاري بد اواز وي يا دهغه عجيبه حركتونه كولو باندي وخاندي په داسي حالت كي بيا نه كافر كيږي ،

كه چا قران دمسخرو او ټوكو په شكل سره وايه كافر سو ،په دليل ددي ايت قراني چه الله تعالي فرمايي: ﴿انَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ﴾ سورة الطارق. ايت.۱۳، يعني قران بيلو نكی دحق او باطل دی ،اوقران مسخري وبازي نه دی، ﴿الجامع الاحكام للقران﴾

په ﴿يتمية الفتاوي﴾ كنبي راځي، كه چا قران داسي استعمالاوه لكه دده خپلي خبري په يوه لوي ازدحام اوجماعت كنبي دغه ټول جماعت په كفر كنبي ورسره شريك دي ﴿فتاوي الهنديه﴾

«ابن الحجر الهیثمي» په خپل کتاب مصدر السابق کښي داسي فرمايي: په ،ج ۶ ص۳۲۷ په دی باره کښي که چا غير له موضع څخه قران استعمالاوه دغه کونکی دغه وخت کافر کیږي ،چه دی دغه کار په خاطر داستخفاف او سپکاوي دقران کوي :او که يي قصد داستخفاف او سپکاوي نه وي بيا کفر ورباندي نسته :هغه وخت استخفاف دی که دويونکي دا مقصد وي چي په دغه خبرو سره خلق پر ځان راټول کړي ،او که يي دا قصد نوي بيا پروا نلري پدغه ځاي کښي تذکر او يادونه دورځي دقيامت ځيني اخستل کيږي ،په ښکاره توګه په دی ځاي کي دا مثال هم کيداي سي ،لکه الله تعالي ﷻ په قران کښي فر مايي: ﴿يَا يَحْيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ﴾سورة المريم ،ايت :۱۲.

يعني ای يحیٰ واخله دغه کتاب په قوت دزړه سره او موږ ورکړي وو دغه يحیٰ ته حکم او نبوت په داسي حال کي چه دی لا هلك وو ،يعني تورات او نوري اسماني صحصيفي چه پر تا يا نورو انبياوو نازلي کړه سويدي ،په ښه مظبوطي سره يي ټول احکام پر ځان او خپل امت باندي عملي کړه ،او دهغو پر تعليماتو هم ښه شاني عمل وکړه :او هم يي پر نورو خلګو دتعميلولو اقدامات وکړه «حضرت شاه صاحب» فرمايي: ددي معنی داسي ده .چه دعلم په ښو لوکښي مصروف سه په ښه زور او طاقت سره ،پلار يي زوړ وو ځودي لا ځوان ځلمي وو چه

خداي تعالي ﷻ ورته نبوت ورکړي ،سره دفهم ،پوهي،علم،حکمت، صادقه فراست،احکام الکتاب ،دعبوديت اداب ،خدمت ،معرفت،په هلکتوب کي الله تعالي ﷻ ورعطا کړل،حکايت دی،وايي يووخت هلکانو ويحیٰ ؑ ته وويل راځي چه لوبي او بازي وکړو :يحیٰ ؑ ورته وويل مونږ ددي دپاره نه يو پيدا سوي چه لوبي او بازي وکړو ،دډيرو علماؤ په نزد الله تعالي ﷻ دخپل عمومي عادت په خلاف يحیٰ ؑ ته په همدغه هلکتوب کښي نبوت ورکړي وو.﴿وَاللّٰهُ أَعْلَمْ﴾

که چا يو نفر ته وويل :فلانکي داسي کور جوړ کړي دي لکه ﴿وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ﴾الطارق،ايت ،۱ کافر سو ځکه دده دغه وينا دمسخرواو ساتيري په شکل وه ،همدارنگه هغه څوک چه ووايي داسي کور جوړ کړه لکه ﴿اَلسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ﴾ يا فلانکي داسي کور جوړ کړيدی ،لکه ﴿اَلسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ﴾دا ټول په يوه حکم کښي دي ﴿فوزالنجاة﴾

په ﴿فتاوي البزازيه﴾ ،هامش د﴿فتاوي الهنديه﴾ کښي راغلي دی ،په جلد ،۶ ص ۳۳۹ داسي متن راغلي دي :﴿قد فصل عالم العلاء الانصاري﴾ في هذه المسئله :﴿وبين ان القائل ان كان جاهلاً لايكفر وان كان عالماً يكفر﴾ يعني که ويونکی ددی

خبري جاهل وو :نه کافر کیږي او که عالم داسي وایي کافر کیږي.

که چا وویل : چه پر دیگ باندي، ﴿قُلْ هُوَ اللهُ﴾ ووایه ژر به پوخ سي کافر سو، ځکه چه دا خبره یي د مسخرو او رشخند په شکل وویل، نه د تبرك په خاطر ﴿فوزة النجاة﴾

که یو نفر داسي وویل: چه دومره﴿ قُلْ هُوَ اللهُ﴾ مي وویل چه بیخي مي پوست کړل یا سورت تنزیل خو مي بیخي په جیب کښي دي، کافر سو.﴿خلاصه الفتاوي لطاهربن احمد البخاري﴾

مؤلف وایي: که یي د ویلو څخه د سورة التنزیل، مراد تمثیل• کول وي، او مراد د الم نشرح څخه یي جیب وي یعني د مسخرو او استهزاء په ډول وایي چه جیب مي درته خلاص کړي، کافر سو.

او که چا سورة التنزیل همیشه وایه د پاره د برکت او اساني لپاره بیا پر وا نه لري بلکي ثواب هم لري، خو هر ډول مسخري او استهزاء کول په قرآن پوري کفر دی،

که چا یوه سړي ته وویل: فلانکیه دا ﴿اِنّا اَعْطَیْنٰاكَ الْکَوْثَر﴾ لنډه کړه مراد یي د لنډیدو څخه مسخري وي ځکه تر دغه خو

لنډ سورة بل نسته نو په دغه استهزاء او مسخرو کولو سره کافر سو «الظهيرية»

که چا سورة يٰس پر يوه مريض باندي وايه بل يوه د سپکاوي په ډول ورته وويل ،په خوله کي يي مه ورپوکه، کافر سو «الفتاوی التتارخانيه» ج ۵ ص ۴۹۱.

که چا يو چا ته وويل راسه په جماعت سره لمونځ وکړو، او ده ورته وويل: يا زه يوازي لمونځ کوم، ځکه خداي تعالی وايي: «اِنّ الصّلاةَ تَنْهٰی» يعني ده قول د تنهی په تنها سره بدل کړي. په عجمي فارسي ژبه تنها و يوازي ته وايي. رسول الله ﷺ فرمايي: «مَنْ فَسّرَ الْقُرآنَ بِرَايِهِ فَقَدْ كَفَرَ» يعني که چا قرآن پخپله مرضی او رايه سره تفسير کړي،هغه کافر سو «الترميذي» في سننه ،ج ۴ ص ۲۶۹ ، سره ددی چه دغه سړی هم حرف بدل کړي او هم معنی، دا ذکر سوي حديث صحيح قابل اعتماد او اعتبار دی. موږ بايد پر دی باندي توقف او اکتفاء هم ونه کړو، روايت دي د رسول الله ﷺ څخه «مَنْ قَالَ فِيْ الْقُرآنَ بِرَايِهِ فَاَصَابَ فَقَدْ اَخْطَاءَ» يعني که چا قرآن پخپله رايه سره وايه هغه لويه گناه وکړه. په بل لفظ کښي داسي روايت سوي دي.

﴿مَنْ قَالَ فِي الْقُرآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ مقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ﴾ يعني كه چا بيله علم او پوهي ښه قرآن وايه د ځان لپاره يي په جهنم کښي د اور چوکي جوړه کړل. يا يي د ځان لپاره په جهنم کي د کښېنستلو دپاره ځاي وټاکه..
دغه دواړه حديثونه د اسنادو له نظره ضعيفه دي،
ددی پوره مسئلي مثال د هغه ترکي په شان دی چه دغه آيت د قرآن داسي ترجمه کوي ﴿تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ﴾ سورةا لسجدة، ايت ۱۶، چه مکمل آيت داسي دي ﴿تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ﴾ يعني د شپي د خوب ښه پورته کيږي دپاره د عبادت او تهجد ، خو ترکي دا آيت داسي ژباړلي دي: دوي کله چه جنب او مردار سي نو د ځايو ښه ولاړ سي، په هر حال د قرآن د حروفو او کليماتو بدلول او ترجمي ته تغير ورکول کفر دی،
په محيط کښي راځي که چا قرآن وايه، او بل ورته وويل: چه دغه کليمة د ﴿وَالْتَفَتِ السَّاقُ بِا السَّاقِ﴾ مه وايه: دا د سورة القيامة ۲۹ آيت دی او بل چا يوه پياله ډکول او ويي ويل﴿وكَاسًاد هَاقًا﴾ سورة النباء ۳۴، او يا يي داسي وويل: ﴿فكَانَتْ سَرَابًا﴾ النباء ۲۰ ، دا ټول يي پر طريقه د مزاح او مسخرو وويل، کافر سو. او يا يي د پيماني کولو يا د يوه شي د تللو په وخت کښي وويل: ﴿وَاذَا كَالُوْ هُمْ اَوْ وَزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ﴾ المطففين ۱، په دغه خبرو کولو کي مراداو مقصد

مسخري او خندا کول وه، په دغه ټولو حالاتو کي ويونکي کافر کيږي. ځکه مسخري کول په قرآن باندي کفر دي. لکه څنګه چه مو مخکي دغه خبره وکړل.
که چا د يو ځاي خلګ په يوه ځاي کښي سره راټول او جمع کړل بيا يي د مسخرو او مزاح کولو په ډول سره وويل: ﴿وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْهُمْ مِنْهُمْ اَحَدًا﴾ سورة الکهف آيت ۴۷ ، او يا يي داسي وويل: ﴿فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا﴾ سورة الکهف آيت۹۹ ، يا يي داسي وويل: ﴿ فَجَمَعْنَاهُمْ عِنْدَنَا﴾ کافر سو.، يوه خبره د يادوني وړده چه که د ويونکي مقصد مسخري او خندا کول وه په قرآن باندي کافر کيږي او که يي د قرآن سپکاوي مقصد نه وي بيا پروا نه لري. ﴿مترجم﴾
درنو لوستونکو راسي چه اوس د پورته آياتونو ترجمه او تفسير وکړو، چه ښه پوه سو. د اول آيت ترجمه او تفسير-
﴿ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِاالسَّاقِ﴾ تاويږي به يوه پنډۍ دده د بلي پنډۍ سره له هيبته او وهم څخه د مرګ يعني په ځينو وقتو کښي د مرګ ده وهمه څخه يوه پنډۍ دبلي پنډي سره موښلي. اوهم د بدن دلاندني برخي څخه د روح د تعلق د منقطع کيدلو له امله د پنډيو ښوريدل او يوه د بلي څخه بيلول به دده په واك او اختيار کښي نه وي. نو ځکه يوه پنډۍ يي د بلي څخه بي واکه کيږي. ځيني اسلاف وايي. چي د عربو په محاورو کښي

﴿ساق﴾ كنايه ده د يوه سخت غم او مصيبت څخه. نو په دی تقدير به ددي ايت ترجمه داسي وكړو، يوه سختي به د بلي سختي سره يو ځاي كيږي. ځكه چي ومړكيدونكي ته په دغه وخت كښي دوي سختي رامخته كيږي. يوه دا چي د دنيا څخه ځي روان دي او مال او دولت او اسباب اهل او عيال كور او كهول جاه او جلال حشم او مرتبه ټول ځيني پاتيږي. دښمنان يي په خوشحاليږي او پيغورونه وركوي: او خپلوان يي خوابدي كيږي او په رنځ، غم او خفگان كي لويږي.
بله يي ددي څخه ډيره لويه او بيريدونكي ده چي هغه د قبر او اخيرت داسي پيښي او احوال دي چي د هغه كيفيت بيانولاى نه سو. يعني سختي د دنيا د اخيرت د سختي سره يو ځاي كيږي.
ددوهم ايت ترجمه او تفسير. ﴿وكَاسًا دِهَاقًا﴾ يعني په جنت كي به متقيانو ته د شرابو پيالي ډكي تر څنډو پوري وركول كيږي.
د پا كو خوږو شرابو جامونه به په جنت كي و جنتيانو ته وركول كيږي په داسي حال كي چي دغه جامونه به تر څنډو پوري ډك وي.
د﴿دريم ايت ترجمه او تفسير﴾. ﴿وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا﴾ غرونه به روان كړل سي او داسي به سي لكه ﴿سراب﴾ يعني

لکه ځلیدونکي شګې چه پر مځکه داوبو په شاني سره معلو میږي،

د﴿څلورم ایت تفسیر﴾ ،﴿وَاِذَا كَالُوْهُمْ اَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ﴾

هر کله چه ځانته دیوه شی پیمانه اخلي نو پوره یې اخلي او چه ورکوي یې نو کمه او لږ ور کوي ،دخلقو څخه خو خپل حق او برخه اخستل په پوره اندازه بد او مذموم کار ندي ،دلته ددي خبري بد ویل مقصود ندي ،بلکي دا دبیر ته لږ ورکولو دمذمت دتاکید لپاره دي ،یعني اګر که لږ ورکول په خپله في نفسه بد او مذموم دي ،خو که دی سره داخستلو په وخت کښي دنوروحق بلکل نه رعیت کیږي ،نو دا بد او مذموم دي پرته له رعایت کونکی څخه چه که په هغه کي یو عیب سته خو یو هنر هم لري ،نو دادي په هغه پسي داول سړي عیب لا شدید او سخت کړه سو ،څرنګه چه اصلي مراد دلږور کولو بدي او مذمت دی، نو ځکه الله تعالیﷻ په ایت کي ،پیمانه ژي ،وزن تلل،دواړه یاد کړل، تر څو خبره ښه ښکاره سي چه دپیمانه کولو او تللو دواړو په وخت کښي لږورکوي ،او څنګه چه پوره اخستل په خپله في نفسه کومه بده خبره نده ، نو یو واري دتاکید دپاره یاد کړل :او دپیماني او تول تخصیص شاید ددی لپاره وي .چه په عربو کښي په تیره بیا په مدینه منوره کښي زیاتره خرڅیدل اورانیول په پیمانه سره وه،

د«پنځم ایت ترجمه او تفسیر» ،«وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا» راجمع به کړو موږ دوي «یعني خلق» نو پري به نږدو ددوي څخه یو نفر هم ،نه داولینو څخه نه داخیرینو څخه، یعني یو نفر هم دالله تعالي ﷻ ددربار څخه غیر حاضر کیداي نسي :دشپږم ایت ترجمه او تفسیر ،پس را جمع به کړو موږدغه مخلوقات ټول دپاره دجزاء،او نژدي اوښکاره به کړو ودویته ،یعني وکفاروته،دوږخ اوعذاب د دوږخ ،
قدر منو لوستونکو ،داوه دایاتونو حقیقي ترجمه او مفهوم خو ځیني جاهلان او ناپوهان یي پخپله رایه په مسخرو او خندا سره بدلوي او په قران کریم باندي مسخري او ټوکي اوخندا کوي خو بیا تکراراً وایم په قران باندي مسخري کول اوبدلول ا وتحریفول یي په هر ډول چه وي کفر دي ،
ددی په کفر کښي دوه سببه دي، یعني دا چه په ویلو سره یي کافر کیږي په دوه سببه. اول داچه قرآن د خپلو خبرو سره یو شاني وگرځاوه. اما په دوهم قول کښي وجه د کفر نه لیدل کیږي. ځکه دغه لفظ چه په قرآن کښي راغلي دي «جَمَعْنَاهُمْ عِنْدَنَا» مجرد اجزاء د خبرو ده په مشارکت کښي د کلیماتو چه په دی‌سره څوك د اسلام څخه نه په وزي. په اتفاق د علماؤو.
که د ویونکي دا خیال وي چه داد قرآن الفاظ دي، وروسته یي وویل: «و» «وَالنَّازِعَاتِ نَزْعاً» یا په پیښں(ضمه) سره یي وویل:

(نَزعاً) مراد يي ورڅخه مسخري وي، کافر سو. «فتاوي الهنديه المرجع السابق» ج۲ صفحه ۲۶۷ (نَزْعَ) په معنى د کښلو ده. يعني قسم دي وي په هغه ملايکو چه د کافرانو په رگو ورننوزي او د هغوي ارواحونه د گوتو د سرو او نوکانو څخه په ډيره سختي سره راکاږي. داوه د «نازعات» صحيح معنى. خو که دغه سړي په مسخرو سره وويل وچاته: «وَالنَّازِعَاتِ» يعني مراد يي مسخري يا انتقام وي چه داسي به روح درڅخه وباسم، په دغسي حالت کي کافر کيږي، ځکه قرآن يي د مسخرو په شکل ياد خپل شخصي انتقام په شکل سره استعمال کړي.

په «يتميه» کښئ راځي: که معلم وويل: «يَوْمَ خَلَقَ اللهُ الْقُرآنَ وَضَعَ الْخَمِيْسَ» نو کافر سو. يعني د کومي ورځي څخه چه خدايتعالى قرآن خلق کړيدى د جمعي شپه يي ټاکلي ده. دى په دي سبب کافر سو چه قرآن يي مخلوق وباله. قرآن ته مخلوق ويل کفر دي. «فتاوي اليتميه» په باب «من يكفر ولم يشعر» ج ۵ .

راسي چه په دى باره کښي ښه څيړنه وکړو که د ويونکى خبره پر مسئله د « خَلَقَ اللهُ الْقُرآن» وي په دى کښي خو خلاف موجود دى.

اول- دا مسئله چه ﴿خَلَقَ اللهُ القُرآنَ﴾ په دیکښي د خوارجو او معتزله وو او ځینو مرجیئه وو او د اهل سنت تر میان لوي اختلاف او نزاع موجوده ده. مشهوره ﴿ائمه﴾ وایي: که چا قرآن ته ﴿خَلقُ الله﴾ یعني مخلوق ووایه کافر سو او نورو بیا د تکفیر څخه امتناع کړي ده: یعني نه کافر کیږي. د موضوع د ښه تشریح او روښانولو دپاره ﴿مقالات الاسلامین للاشعري﴾ ج ۱ ص ۲۰۳ وګوري. او که مبنی پر صیغه د فاعل وي، نو ده پر خدایتعالیﷻ باندي درواغ وویل،

په ﴿شرع الاعطاء الخمیس﴾ کي چه یو فقهي عالم دي، هغه ئي ښکاره کفر بولي. په خلاف د هغه چا چه په صیغه سره د مفعول یي ووایي، چه پکښي بیا موضع زلل سته.

محمد بن یوسف په خپل کتاب ﴿زبدة الفتاوی﴾ کښي وایي.

که څوك و چاته ووایي: چه د قرآن مزدوري واخله کافر کیږي. په دي باره کښي هم بحث او بیان ته ضرورت سته. داسي احتمال سته چه دا خبره د فقیه یا کاتب څخه د کتاب وکړه سي.

دا بیا پر دوه قسمه دي، ﴿اول﴾ یا یي معنی داوي چه د تعلیم یا د نوشته کولو مزدوري واخله په دیکښي باك نسته. ځکه جمهورو علماؤ د متاخرینو تعلیم ورکول د قرآن په مزدوري

سره جايز او روا بللي دي. او پر اخستلو د اجوري پر مصحف باندي اتفاق دي. «فتح الباري لابن الحجر» ج ۴ ص ۴۵۳.

«دوهم» او که مقصد يي د قرآن جوړيدل يا تصنيفول وي کافر کيږي. ځکه دده مقصد د خبري څخه داوي چه قرآن يو صنع يا تاليف انساني دي.

که چا د يوه سړي څخه پوښتنه وکړل: چه دا «قدر او باقيات الصالحات» بيا څه شي دي؟ کافر سو. دا هغه وخت کيږي که ويونکی په استهزاء او مسخرو سره دا خبره کول. يا يي د کلام الله ﷻ څخه خپلي خبري جوړي کړلی. چه داسي مي وکړل«و» داسي مي وکړل.

او که د چا هدف او مقصد د حکمت پوښتنه وي په قدر کښي يابيي دا مقصد وي ځنګه باقيات صالحات وکړي؟ بيا پروا نلري. دا مسئله «ابن قطلوبغا» په خپل کتاب «من يكفر ولم يشعر» لوحه ۵ کښي راوړي ده او هم «محمد بن يوسف الكرماني» په خپل کتاب «زبدة الفتاوى» لوحه ۳۷۵ کښي ذکر کړي ده.

په «فتاوى الظهيريه» کښي راځي که د دوو نفرو يو د بل سره بحث سو يوه ورته وويل: «لاَ حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلا بِا الله» او هغه بل وويل: «لا حَوْلَ لَيْسَ اِلا عَلَى الاَمْرَ» يعني لا حول نسته .

مگر پر کار باندي یا یي داسي وویل: زه څه وکړم په ﴿ولا حول ولا قوة الا با الله﴾ سره ستا چه نه سړي مړوي او نه وږی کوي، یا نه د یوي ډوډی ځاي نیولی سي اونه یوه ډوډی ارزي. یا ووایي: بس کړه ستا دغه ﴿لا حول ولا قوة﴾ زما په هیڅ درد نه خوري، کافر سو په ټولو وجوهاتو سره ﴿الفتاوی تتارخانیه﴾ ج ۶ ص ۳۳۹ او ﴿فتاوی الهندیه﴾ ج ۲ ص ۲۷۲،

په ﴿محیط﴾ کښي راځي د هر نامه سره د الله تعالیٰ ﷻ او هر تسبیح وتهلیل سره سپکاوي کول کفر دی. همدا رنګه که چا په خبرو کي یا یوه موضوع کښي وویل: ﴿سُبْحَانَ الله﴾ بل نفر ورته وویل: دا څه کوي نوم د خدای ﷻ دي بیخي پوست کړي. یا یي ورته وویل: ترڅو به دا سبحان الله وي ته راته وایي؟ کافر سو. ځکه استخفاف او سپکاوي په نامه سره د خداي تعالی کفر دي. ﴿فتاوي تتارخانیه﴾ ج ۵ ص ۴۹۹ باب ﴿من یکفر ولم یشعر﴾

خو شارح وایي: که چا دغه پوښتنه د تعلیل او استفهام په شکل سره وکړل بیا پروا نلري. باك نسته یعني دده مقصد داسي وي: چه څو واره سبحان الله وایي یا تر څه وخته سبحان الله وایي؟ پر طریقه باندي د پوښتني په اوریدلو یا یو ځاي

کولو سره د پوښتني بیا سرې نه کافر کیږي. ځکه چه مقصد پوښتنه کول دي. نه سپکاوي د نامه د خداي تعالی.
همدارنگه که چا خمار﴿قمار﴾ کاوه نو د شروع په وخت کښي وویل: ﴿بسم الله﴾ راولي ته دوه، یا یي مقصد داوي ﴿بسم الله﴾ یعني خدایه راوی گتی. کافر سو، ځکه د خدایتعالی د نامه یادونه پر حرامو کول یا د خداي تعالی د نامه سپکاوي کول په دواړو حالاتو کښي کفر دی. دا مسئله ﴿محمد بن یوسف الکرماني﴾
په ﴿زبدة الفتاوی﴾ لوحه ۳۷۵ کي ذکر کړی ده. اوهم ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿ یکفر ولم یشعر﴾ کي ذکر کړی ده.لوحه ۵
همدارنگه دا خبره پر ټولو قمار بازانو باندي قیاس ده، چه کوونکي یي په شروع کولو کي ﴿بسم الله﴾ وایي یا فال بین د فال په کتلو کښي ﴿بسم الله ﴾ وایي یا هغه کوډگر چه د رمل دانی د گیلیدلو سره ﴿بسم الله ﴾ وایي د لوړي ذکر سوي مسئلي تر حکم لاندي دي
په ﴿یتمیه﴾کښي راځي: که چا دشرابو دخوړلو په وخت کښي بسم الله وویل :یا دزنا کولو په وخت کي یا دبل حرام شي دخوړلو په وخت کي بسم الله وویل:کافر سو،پدي کښي دا

خبره شرط ده چي ويونکي دبسم الله ددغو شيانو په حراميت باندي پوه او عالم وي :او هم دهغه شي حرمت په دين او شرع کښي په دليل قطعي سره حرام ثابت سوي وی،لکه چيښل دشرابو،﴿خلاصة الفتاوي لطاهر محمد بن احمدالبخاري﴾ لوحه ۳۷۵.

او شيخ بن العلاء،اوحفظ الدين البزازي ادتکفير دپاره پردی شرط باندي تاکيد کړيدي :که چا دحرام کار دکولو په شروع کښي بسم الله وويل:پر طريقه دسپکاوي کافر کيږي ،﴿التتار خانيه﴾ ج،۵،ص،۴۹۹،

که چا دحرام شي دخوړلو څخه وروسته وويل:﴿الحمد لله﴾ په ديکښي اختلاف دي که يي په دی نيت ﴿الحمد لله﴾ وويل:چه دا رزق دی ، کافر کيږي :ځکه ده حرام رزق احسان او نعمت دنعمتو څخه دخداي تعاليﷻ وباله او که يي اراده دحمد پر رزق مطلق باندي وه په خيال کي هيڅ فکر دحلالو او حرامو نه وي ،بيا نه کافر کيږي :په خلاف دمعتزله وو دمذهب :ددوي په نزد حرام رزق نه دي ،يعني دوي يي رزق نه بولي ،او زموږ په نزد رزق دي :که څه هم مشتمل پر حلال او حرامو وي :﴿وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالاَحْوَالِ﴾ مقالات الاسلاميين :ج،۱،ص،۳۲۲،په باب ﴿مسئلة الرزق عند اهل السنة والجماعة﴾او شرح داصول

الخمسة ده عبدالجبار بن احمد وگوري:ص، ۷۸۴،اوشيخ على القاري په خپل كتاب ضوء المعالي كښې فرمايي :په دغه مسئله كښي دمعتزله وو مذهب فاسد دی :همدا رنگه جناب قرطبي په دغه باره كښي داسي فرمايي ﴿انّ الرزق لو كان بمعني التمليك لوجب انّ لا يكون الطفل مرزوقاً ،ولاالبهائم التي ترتع في الصحراء،ولاالسخال من البهائم لانّ لبن امهاتها ملك لصاحبهادون السخال ،ولما اجتمعت الائمة علي انّ الطفل والسخال مرزوقون ،وانّ الله تعالي ،يرزقهم مع كونهم غير المالكين ،اعلم انّ الرزق هوالغذاء،الائمة مجمعة علي انّ العبيدوالاماء مرزوقون،وانّ الله تعالي يرزقهم مع كونهم غير المالكين ،فعلم ان الرزق ما قلنا لا ما قالواهم﴾ داوو دجامع الاحكام القرآن متن ،ج :۱ ص ۱۷۷

قدر منو لوستونكواوس به دلوړ متن ترجمه ،يا ژباړه درته وكړم ،

كه چيري رزق په معنى دتمليك وای نو بايد كوچني شير خوره طفل به رزق نه درلو دلاي ،او نه به هغه حيواناتو رزق درلودلای چه په صحراء كښي گرځي او مالك نلري ،او نه بايدد حيواناتو بچيانو رزق درلو دلاي ،ځكه ددوي دمندو شيدي خو ددغو حيواناتو دمالكانو حق دي نه ددوي دبچيانو ، نو چي دټولوامامانو اجتماع پر دي خبره ده ،چه كوچنيان او

حیوانان ټول رزق لري مرزوقون دي ،خداي تعالي رزق ورکوي
سره ددي چه دوي مالك نلري مگر ټولو ته رزق ورکول کیږي ،
ددی خبري څخه دا راته معلومه سول :چه رزق غذاء ده ،او پر
دغه خبره دامت په اتفاق سره اجتماع ده ،چه مریان او
منځیاني هم هر یو رزق لري خداي تعالي وهر یوه ته رزق
ورکوي سره ددی چه دوي مالکان ندي ،دا خبره روښانه سول
:چه رزق داسي دي لکه څنگه چه موږ وایو نه داسي لکه څنگه
چه معتزله وایي ،

بیا علامه بدر الرشید یا د فتاوي الیتمیه مؤلف وایي:
ما د ځیني لویو خلقو څخه اوریدلي دي، دوي وایي: دغه
غټان خلق کله کله ځیني اوقات داسي خبري کوي، کله چه
دوي یو ځاي ته د ننوتلو اجازه غواړي نو وایي: ﴿بسم الله﴾ لکه
چه و چاته وایي: راځه، یا راولاړ سه یا راوخیژه، یا کښینه.

نو د اشاري په شکل وایي: ﴿بسم الله﴾ مقصد یي اجازه
غوښتنه وي. په دغه سره کافر کیږي. ځکه کلام الله ﷻ یي خپلي
خبري وگرځولي. چه په دغه وخت کښي دا سپکاوي د کلام
الله ﷻ بلل کیږي. دا وو په داسي حالت کښي د اجازه غوښتلو
یا اجازه ورکولو.

دغه مسئله د امر ده، هغه داسي ده چه د چا په کور کي میلمانه راغلي وي. او ډوډي را حاضره سي، د کور خاوند و میلمنو ته وایي ﴿بسم الله﴾ یعني د ډوډي خوړل شروع کړي چه دا خبره ډیر ځایونه داشاني کیږي او خلق یي کوي. په دغه زمانه کښي ادیان په [illegible] حالت کښي ورته کفر ویل بد ګڼي. په ظاهره او ښکاره خو د [illegible] ه داسي معلومیږي چه دوي و میلمنو ته د ادب او احترام کولو په خاطر دا خبره کوي، ځکه په خوله نه ورته وایي چه ونیسه خوره یي نو پدغه خاطر د ادب وایي: ﴿بسم الله﴾ یا خو یي د ﴿بسم الله﴾ ویلو څخه مراد برکت وي یعني ویي خوره په ﴿بسم الله﴾ سره. په داسي حالت کښي نو ویونکی ته یا وقاري ته یا د یوه کتاب و مصنف ته نسو ویلای چه ده کلام الله د خپلو خبرو سره یو شاني کړل. یا کلام الله ﷻ یي د خپلو خبرو پر ځاي کښیښودل یائئ استعمال کړل. ځکه په داسي حالاتو کښي باید پر ظاهره باندي اعتماد ونکړه سي. ځکه چه مجهول او بي اسناده ده. تر څو پوري چه تقلید معین وي او بدی یي معلومه نه وي نو داسي تقلید جایز دي. دا هم نن صبا په موږ کي رواج ګرځیدلي دي چه میلمه ته نه وایو چه خوره یي په خاطر د ادب او احترام بلکه ورته وایو چه ﴿بسم الله﴾ کړه.

«شیخ بزاز» چه د خوارزم د مشهورو علماؤ څخه دی په باره کښي د پیمانه کولو د یوه شي یا د تتلو په وقت کښي د حساب کولوکي داسي وايي: «واحد بسم الله» یعني یو بسم الله د خپلو خبرو په ځاي کښي لفظ د واحد کښیږدي. چه پدغه سره یي مقصد د حساب شروع کیدل نه وه، ځکه که یي د حساب شروع کیدل مراد وای، نو ویلي به یي واي: «بسم الله واحد» لکن داسي ونه ویل، صرف په بسم الله ویلو سره یي اکتفاء او اقتصار وکړي. چه پداسي کړو سره کافر کیږي. «فتاوي البزازیه ، المسمي باالجامع الوجیز الامام حافظ الدین محمد بن محمد المعروف بابن البزاز الکردي»

لوړه مسئله ونور بحث ته هم ضرورت لري هغه داچه داخبره هم لیري نده چه دده مقصد دحساب شروع کول دي :لکه ځنګه چه په بسم الله سره دحساب شروع کول وه .یعني لکه چه وایي ،شروع کوم :یا مي شروع وکړل پدغه وخت کښي بیا دواحد لفظ ویلو ته ضرورت نسته :ځکه دده مقصد صرف دخبرو شروع کول وه پر ویونکی باندي هیڅ ملامتیااو ګناه نسته ددی مثال داسي دي :لکه ځیني جاهلان چه مکي شریفي ته ولاړ سي او غواړي حجر اسود مچ کړي :نو داسي وایي«اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلي نَبِيٍّ قَبْلَكَ» چه په ښکاره سره داکفر دي مګر په اصل

کښي دوي ومخکي خبري ته التفات وکړي، یعني څنگه چه ته رسول الله ﷺ مچ کړي بيي زه دي هم مچوم.
په ﴿محیط﴾ کي راځي که چاوویل: چه قرآن اعجمي دی، کافر سو. ﴿ابن نجم في بحر الرایق﴾ ج۵ ص ۱۲۱ او ﴿فتاوي التتارخانیه﴾ جلد ۵ ص ۲۹۲ . جناب ﴿قرطبي﴾ وایي: په دی کښي خلاف نسته چه په ټول قرآن کښي داسي کلمه نسته چه پر اسالیبو د اعجمیانو دي جوړه وي. هو: خو داسي نومونه په قرآن کي سته چه د غیر عربي ژبي څخه وي، لکه اسرائیل ، جبریل، عمران، نوح،لوط، او په دي کښي اختلاف سته چه داسي جملي دي پکښي وي چه هغه د اعجمي ژبو څخه جوړي وي، لطفا دغه تفصیل ددی موضوع په ﴿جامع لاحکام القرآن﴾ ج ۱ ص ۶۸ کي وگوري،
دا چه قرآن اعجمي بلل کفر دی په دی دلیل سره چه الله تعالی فرمایي: ﴿ قُرآنٗ عَرَبِیًّا ﴾ سورة یوسف آیت ۲
که چیري کوم اعجمي کلیمه هم پکښي وي، د عربیت څخه نسي وتلاي. ځکه چه نور ټوله قرآن عربي دی.
نو جزء تابع د کل گرځي. او په یوه کلمه سره و ټول قرآن ته نه څوك اعجمي ویلاي سي، او نه هم ویل کیږي،

که چا غازیان یا مجاهدین ولیدل چه و جهاد ته روان دي، بل نفر راغلي: ویل دا ، ریجي خواره یا ډوډي خواره دي. ځیني وايي چه پز دغه باندي هم د کفر بیره سته. (ابن قطلوبغا) په خپل کتاب «من یکفر ولم یشعر» کي دغه مسئله په واضحه او صریحه توگه راوړي ده.

شیخ عبد العزیز بن باز ﷫ عربستان سعودي لوي مفتي دا مسئله داسي تشریح کړي ده، که د دغه سړي دغه خبره په خاطر د مسخرو او سپکاوي و دین ته وي نو د اسلام او دین څخه په وزي.او که د بل شي په خاطر وي یعني د دوي نیتونه صحیح نه دي چه د شرعي سره څه اړیکي نه لري داسي نیت وي، بیا پروانلري.

پر ویونکي باندي هیڅ شي نسته. «فتح المجید» ص ۴۴۹ المرجع السابق..

او شیخ علی قاري «رح» فرمایي: که ددغه ویونکي مقصد او هدف و دین او اسلام ته اهانت او سپکاوي وي کافر سو، او که یي دا مقصد وي چه د دوي نیتونه صحیح او سم ندي مازي ډوډي خواره دي، بیا نه کافر کیږي.

همدارنگه که چا د سهار لمونځ وکړي او بیا یي په فارسي سره وویله: «افجرت را گزاردم» یعني ستا د سهار لمونځ خو

مي وکړي. یا یي په ترکي ژبه وویل: «سالیني اد دم» کافر سو. یعني ددغه کوونکي مقصد دا وي هغه چه دي پرما او پر سلطان او خان باندي یو شاني ایښیدی، ومی کړل. ځکه کافر کیږي چه دده مقصد د احکامو او اوامرو الهي وو سپکاوي وو.

که چا داسي وویل: چه نه لمونځ کوم اونه قرآن وایم بیا که څه هم لمونځ وکړي او قرآن ووایي او پر ځان باندي سختي او تکلیف راولي، خو د کفر د چوکاټ څخه نسي وتلای، ځو توبه ونه کاږي.

که چا داسي وویل: چه خدایه تا ماته تاوانونه او نقصانونه را رسولي دي، زه هم ستا حق نه ادا کوم او نه هم لمونځ کوم، که څه هم په یوه مسئله کي په ظاهره کفر نه لیدل کیږي، خو په اخیره مسئله کښي کفر لیدل کیږي، یعني کافر کیږي. «فتاوي التتارخانیه» ج ۵ ص ۲۶۸.

اوس راسي په پورته مسئله کښي لږ غوندي فکر او تائمل وکړو، هغه دا چه د حق تعالی سره معارضه کول د علاماتو څخه د زړه دکفردی. په خلاف د «تَارِكُ الصَّلٰوة» یعني د لمانځه پریښودونکي د خداي تعالی تعظیم پریښودي. که څه هم په دی موضوع کښي د علماؤ خلاف موجود دي، خو بیا هم د طاعت په پریښودلو سره د ایمان څخه نه وزي. «وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ»

په «فتاوي اليتميه»کښي کي راځي :که چا وويل :قصداًچه زه لمونځ نه کوم دا خبره يي داستخفاف او سپکاوي په شکل وويل :يا يي وويل زه امر کړه سوي نه يم ،کافر دی ځکه منکر دلمانځه کافر دی ،په «فتاوي التتارخانيه»کي زر قاني وايي ،دا منکر ته بايد دتوبه کولو امر وکړه سي ،چه همدغه دده بيرته رجوع ده واسلام ته :چه لمونځ کول شروع کړي او دانکار څخه توبه وکاږي،

«شيخ ابن القدامه» چه پر «فتاوي التتار خانيه» باندي شرح کړيده ،دی وايي نه پوهيږم چه په منکر دلمانځه کښي اختلاف سته چي بيرته پر لمانځه باندي امر کړه سي .خو دا بايد هغه وخت وکړه سي که دی پدغه نه پوهيدي چه دلمانځه کول واجب دي ،المغني،ج۲ ص، ۴۴۲

په هر حال په کفر کښي شك نسته په ټولو حالاتو کښي:

حسام الدين شهيد عمر بن عبدالعزيز په خپل کتاب «فتاوي الصغري»کښي داسي فرمايي ،که چاوويل :چه نن لمونځ نکوم او يا هيڅکله لمونځ نه کوم کافر کيږي په «رد»سره«فتاوي الصغري»

په داسي حال کښي په ظاهره سره دا عطف کيږي په اول حال سره دمشارکت په کفر سره،په اوله مسئله کښي کفر ښکاره

دي په حالت كي د«رد»په خلاف ددوهمي مسئلى ،چه هغه بايد دا ووايو .چه اصرار او هميشه توب پر گناه كبيره باندي كفر دى :بلي هو:په دى سبب سره كفر دى چه ور باندې ببريږم دكفر څخه:ځكه گناهونه كول په هميشه توب سره دكفر پوسته يا «ډاگ»دى، يا دا معني چه گناهونه كفر ډيره وي ،كه څه هم پريښودل دعباداتو په كلي توگه سره او دگناهونوكول په هميشه توگه بنده دايمان څخه نه باسي په نزد داهل سنت او جماعت ،په خلاف دخوارجو او معتزله وو،

«شيخ التيميه» وايي :اهل السنت والجماعة هغه څوك دي چه دوي درسول الله ﷺ ،پر افعالو او اقوالو او اعمالو باندي دزړه داخلاصه اعتقاد ولري،

«فتاوي الحموية الكبري» وايي اصطلاح داهل سنتو پر دوومعني گانو باندي اطلاقيږي،چه يوه يي دغه عامه معنى ده چي هغه په مقابل داهل تشيعو ده،او په دغه عامه معني كښي ټوله اسلامي ډلي داخليږي غيرله اهل تشيع څخه: وايي هغه كسان چه و اسلام ته منسوب دي پر دوه ډوله دي. چه اهل سنت او شيعه دي، او بله خاصه معنى يي داده. چه مقابل د مبتدعينو او اهل الاهوائ عامه دي.

«امام احمد بن حنبل» او «علی بن المدني» وايي: كه څوك په يوه شي كښي د علم الكلام ولويدل، د اهل سنة او جماعت

څخه نه بلل کيږي. او کله چه په سنتو کښې څه خبري او مجادله وسي نو ونصوصو ته يي تسليموي. دلانښه معلوماتو دپاره شرح الاصول الاعتقادد اهل سنة و الجماعة وګوري. او ﴿خوارج﴾ چه ورته: ﴿النواصب والحروريه﴾ هم وايي. نسبة يي و هغه ځايته کيږي چه اول سړي ددوي په ضد د حضرت علی بن ابي طالب را ووتي، چه مجبوره يي کړي چه حکم د معاويه بن ابي سفيان ومني. او ورڅخه وغوښتل سول چه معاويه مچ کړي، او علی پريږدي، توبه وکاږي. دا داسي بلل کيږي چه په سبب د حکم کافر سو، لکه چه کافر سي او توبه وکاږي. او خوارج پر شلو ډلو باندي ويشل سويدي. په بل قول دوي د حضرت عثمان او حضرت علی بن ابي طالب رضي الله تعالی عنهما، د دواړو څخه مبراء او بيزاره دي.

د دوي په نزد د لويو ګناهو کونکي کافر دي.

او که امام د سنتو څخه مخالفت وکړي بايد حتماً يي په ضد قيام وکړه سي. ﴿الملل والنحل للشهر ستاني ج ۱ ص ۱۱۴﴾ او ﴿تاريخ مذاهب الاسلاميه، لمحمد بن ابي زهره، ص ۶۰﴾

د معتزله وو تعريف خو مو مخکي درته کړيدي. ددوي مذهب وايي: د لويو ګناهونو د مرتکب حکم د کافر نه دي، اونه يي

حکم د مؤمن دی. چه دده لپاره خاص دریم حکم دی: چه هغه ته ﴿منزلة بین المنزلتین﴾ وایي.
یعني په مابین د کفر او ایمان. ﴿شرح الاصول الخمسه﴾ د عبدالجبار بن احمد ص ١٣٧ . په ﴿خلاصه﴾ کښي راځي که چا وویل: ﴿که خدایتعالی هم لس واره راته ووایي لمونځ وکړه، لایي نکوم﴾ او که ووایي: که ودغه خوا ته قبله سي لمونځ لانه ورته کوم. که څه هم دغه دواړه کول مشکل اونا ممکن کار دی، لیکن ویونکي ددغه قول کافر کیږي، په خاطر د مخ اړولو د الله تعالیﷻ د جانبه څخه وطرف ته د شیطان. لکه څنګه چه شیطان وویل: څه وخت چه په سجده کولو سره امر کړه سو ویي ویل: ﴿لَمْ اَكُنْ لِاَ سْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُ مِنْ صَلْصَالٍ﴾ سورة الحجر آیت ٣٣.
و فرمایل: الله تعالیﷻ ای ابلیسه څه عذر ووتالره په دي کښي چه سجده دي ونه کړل؟ وویل: ابلیس چه نه یم زه لایق ددی، یعني زما دشان سره نه ښایي چه سجده وکړم، داسي بشر ته چه پیدا کړیدي تا د کودرکو څخه چه ګرنګیدونکي دي چه هغه بیا د تورو خیرونو خټو څخه جوړ سویدي. ﴿چه د تورو خټو څخه یي مراد لوشي دي﴾

شیطان وویل: انسان د یوه ناحقه شي څخه پیدا سویدی چه خاوري دی، او زه د یوه شریف شي څخه پیدا سوی یم. چه اور دی. نو روحاني لطیف شي او جسماني کثیف شي ته څنګه سجده وکړي؟ لکه چه شاعر وایي،

دی احمق دیته هیڅ ونکړه نظر،

چه په خاورو کښي مدفون وي سیم وزر،

امانت دي کار د مځکي اور خاین دي،

له امین څخه خاین چیري وي بهتر،

﴿شوکاني﴾ هم دا وایي: چه شیطان ځکه و آدم ته سجده ونکړل چه هغه د تورو لوشو څخه جوړ دی، او زما عنصر چه اور دی تر ده ښه دي نوزه څنګه تر ځان وکښته ته سجده وکړم، (فتح القدیر) ج ۳ ص ۱۳۱.

ابلیس علیه اللعنة د سجده کولو انکار په خاطر د عناد او حسد او تکبر او افتخار وکړي. چه همدغو اعمالو مستحق او لایق د لعنت وګرځاوه. چه متواتره اوهمیشه به ورسره وي د ورځي تر قیامته پوري . ﴿ابن کثیر﴾

شیطان نه سو کافر په ترك د سجدي، مګر کافر سو په سبب د معارضي اونه منلو د امر الهي. کنه دی او آدم خو په مرتبه کښي یو شان دي. په مخالفت کولو د خوړولو د ممنوعي درختي څخه، مګر آدم ﷺ پر خپله کړنه باندي پښیماني او

ندامت وکړي. مګر شیطان د حسد او عناد او افتخار او تکبر د لاري معارضه وکړل.

اوس دا ښه روښانه سول چه معارضه د الله ﷻ سره او خلاف د امر او حکم الهي څخه کفر دي. په یوه نخسه کښي راغلی دی، چه منسوبه ده، و «فتاوي الظهیریه» ته.

که کوم مریی داسي ووېل: لمونځ نکوم چه ثواب یي زما بادار ته هم ورکول کیږي، دی کافر کیږي په دي ګمان چه ده ته د لمانځه ثواب نسته د بادار یي دي. سره ددي چه پر مریي باندي لازمه او واجبه ده چه د خپل بادار اطاعت وکړي، که وده ته ثواب وي او که نه وي.

حال دا چه مالك او مریي دواړو ته ثواب سته. مالك لپاره یي سببي ثواب دي، فضل او رحمت د الله تعالی ﷻ پراخه او واسع دي.

«امام فخر الدین الرازي» وایي: که چا داسي ووېل: که خداي جنت او دوزخ نه واي پیدا کړي، مابه یي عبادت نوای کړي. کافر سو، ځکه پر بنده باندي واجبه ده چه دده د رضا په خاطر دده د ذات عبادت وکړي.

« امام بن عمر بن حسن بن حسین القرشي التیمي البکري ابو عبد الله فخر الدین الرازي» چه هم مفسر او متکلم دي په ډېرو ځایو کښي د خپل تفسیر و دغي معنی ته اشاره کړېده، لیکن

لفظ د کفر صریح یې نه دي یاد کړي. خو شاید په بل ځاي کښې ددي خبري دلیل یې ذکر کړي وی. لکه ددی آیت په معنی او تفسیر کښې چه الله تعالی فرمایي: ﴿وَمَا أُمِرُوا اِلاّ لِيَعْبُدُوا اللهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ حُنَفَاءَ﴾ سورة البينة آیت ۵ .

حال دا چه امر او حکم نه وو ورکړه سوي دویته په تورات او انجیل کښې، مګر ورکړه سوي وو چه عبادت کوي د الله ﷻ پداسي حال کښې چه خالص کونکی وی داعبادت و الله تعالیٰ ﷻ لره.

خالص او پاك د شرك او نفاق څخه اوهم پداسي حال کښې چه راګرځیدونکی وی له باطل څخه و حق ته، پر لاره او طریقه د ابراهیم ﷺ پس څنګه کافران کیږي، پر محمد علیه الصلات والسلام باندي،

یعني د هر راز باطلو او دروا‌غودعباداتو څخه ځانونه خلاص کړي،او خاص د واحد لایزال الله ﷻ بندګي وکړي، د حضرت ابراهیم ﷺ په شان له هر چا او هري خوا څخه علاقه وشکوي.

د هم هغه یوه مالك الملك بندګان سي،. او تشریع او تکوین هیڅ یوه شعبه او څانګه او نور شیان مستقل او خپلواك ونه بولي.

هو: عبادت ددی لپاره نه دی واجب سوی چه په عوض کي یي ثواب او جنت راکړه سي، او په نه کولو کښې عذاب او دوږخ

راکړه سي. بلکي ددی لپاره عبادت واجب کړه سوي دي پر بنده باندي، چه ته بنده او هغه رب دی. که چيري په دين کښي هيڅ عقاب او ثواب هم نواي. محضي د بندګي په خاطر به پر عبادت باندي بندګان امر کړه سوي وای. په ^(۱^)دیکښي و دی خبري ته هم اشاره وسول چه ثواب او عقاب بندګي ده. او په حقيقت کښي معبود پخپله ثواب او عقاب دي او حق يي تر ميان واسطه ده، ﴿تفسير الرازي﴾. ج ۳۲ ص ۴۴.

که چا غير دروژي دمياشتي څخه بل وخت لمونځ نه کاوه .او وی ويل دا لاهم راباندي ډير دي ،

يا يي وويل: چه دا ډيريږي ځکه يويي په اويا دي. په دواړو حالاتو کښي کافر کيږي، ﴿فتاوية البزاز﴾ ج ۶ ص ۳۴۱ او ﴿عالم بن العلاء﴾ او ﴿فتاوي التتارخانيه﴾ ج ۵ ص ۴۹۵ او ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب کښي ﴿من يکفر ولم يشعر﴾ لوحه ۵ کښي هم دغه مسئله راوړي ده.

که چا داسي وويل: چه د روژي هر لمونځ يو په اويا دي، خپل کمبود به پدغه سره پوره کړم. او په دی عقيده وي، چه بالابود کيدل د اصلي عبادت د سړي د سره څخه کمبود ساقطوي. او شميرل د عباداتو ګناه ده او هم سړي په کافر کيږي، چه پدی کښي و ډير بحث ته ضرورت سته.

دا خبره د یادوني وړ ده. چه طاعت او عبادت د الله تعالی خو د اوله څخه ډیر وو . دغه لړوالي او سپکوالي خو په شفاعت د رسول الله ﷺ پکښي راغلي، وَاللهُ اَعْلَمْ.

که چا وچا ته وویل: لمونځ وکړه. هغه وویل: زه ستا په امر سره لمونځ نکوم، کافر سو. دا داسي دی لکه اعتراض کونکی پر امر د خدایتعالی، یا سر غړونکي دامر څخه د خدای ﷻ

ځکه امر کول پر معروف او منعه کول د بدو څخه په امر سره د خدایتعالی فرض دی. چه فرمایي: ﴿ تَاْمُرُوْنَ بِا الْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ او ده دغه امر فرض ونه باله، دا خو واضحه او ښکاره ده چه انکار د فرضو څخه او اعتراض کول پر امر د خدای تعالی کفر دی.

که چا داسي وویل: زه ولي لمونځ وکړم دا دومره خلګ دادي لمونځونه کوي، د خدای تعالی زما و لمانځه ته څه ضرورت دي؟ کافر سو.

که دده دا عقیده وي چه لمونځ فرض کفایي دی. چه یو یي وکړي، د نورو غاړي هم په خلاصیږي. یا یي د خپلو خبرو مراد استهزاء او مسخري وي. ﴿فتاوي البزازیه﴾ ج ۶ ص ۳۴۰ او﴿ زبدة الفتاوي د محمد بن یوسف ﴾ لوحه ۳۷۷ او ﴿بحر الرایق﴾ د ابن نجم، ج ۵ ص ۱۳۱ وګوري..

که چا وچا ته وویل: ته خو دا دی لمونځ کوي، زما پر ځاي يي هم وکړه. دا هم عيناً پر مخکي مسئله باندي عطف ده.

که چا ويل زه لمونځ نکوم. نه ماينه لرم نه زوي، کافر سو. ځکه دده دا عقيده ده چه لمونځ پر هغه چا باندي نه واجبيږي چه ماينه او اولاد نلري. يايي په خپلو خبرو سره د خدايتعالی په مقابل کښي معارضه او مناقشه مراد وي اويايي دخداي ﷻ دامرسپکاوي هدف وي، ﴿زبدة القتاوي﴾ لوحه ۳۷۷ ﴿قتاوي التتارخانيه﴾، ج ۵ ص ۴۹۴ . او همدارنگه ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿من يکفر ولم يشعر﴾ کښي په لوحه پنځه کي دا مسئله راوړيده.

که چا و چاته وويل: ولي لمونح نکوی؟ يا ده د ځانه څخه وويل: د دا ډيرو لمونځو څخه خو مي بيخي زړه په تنگ سو، يا ورڅخه خوا توري سولم، کافر سو. په سبب د اعتراض د فرضيت پر ډيرو لمونځو باندي. ﴿فتاوي التتارخانيه﴾ د عالم بن العلاء الانصاري) ج ۵ ص ۴۹۵ ، فتاوي الهندية المرجع السابق، ج ۲ ص ۲۶۸.

په (جواهر) کښي راځي که چا وويل : اوس نو داډيرو لمونځو څخه موړ سولم بيخي بد مي ځيني راځي، يا يي وويل: څوك د خداي تعالی پر امر باندي عمل کولاي سي، يا څوك پر دغه لار باندي د خداي ﷻ تلاي سي. د داسي خبرو په کولو او عقيدي درلودلو سره کافر کيږي. ځکه دده خبري پر دی باندي دلالت

کوی چه خدایتعالی ﷻ پر ده باندي دده تر طاقت زیات بار ایښي دی، حال داچه الله تعالی ﷻ فرمایي:
﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ سورة البقره آیت ۲۸۶. یعني الله تعالی ﷻ څوك نه مکلف کوي مگر په اندازه د خپل طاقت.
﴿قرطبي﴾ په خپل کتاب ﴿جامع لاحکام القرآن﴾ ج ۴ ص ۴۲۸ کښي وايي: چه د همدغه آیت په دلیل سره د چا څخه د هغه تر طاقت ډېر کار اخیستل غیر جایز وگڼل سول. که څه هم په دنیا یي کارو کښي اختلاف دی، چه ځیني یي جایز بولي. چه په دی دنیا کښي د ضرورت په وخت کښي دده تر وس او طاقت زیات کار هم ورڅخه واخیستله سي. اهل سنت او متکلمین پر دی باندي دي چه د طاقت څخه اضافه کار اخیستل جایز ندي. او ﴿ابو الحسن اشعري﴾ او نور متکلمین وايي: د چا څخه تر طاقت زیات کار اخیستل عقلاً جایز دي. ځکه چه دغه و عقاید و شرعیه ووته څه نقصان او تاوان نه رسوي، خو وچاته تعذیب ورکول فوق الطاقت قطعاً حرام دي.
که چا وچاته وویل: ولي لمونځ نکوي؟ هغه ووایي: صبر وکړه چه د روژی میاشت راسي، کافر سو. که یي دا عقیده وي چه لمونځ غیر د روژی میاشتي څخه بل وخت ندي فرض، یایي دا گمان وي چه د رمضان د میاشتي لمونځ د نورو وخت د لمونځو ځاي نیسي.

که چا وويل: چه عاقلان وايي داسي کار ته لاس مه ور اچوه چه کول يي ستا تر طاقت لوړ وي. کافر سو، په سبب ددی عقيدی چه ده د لمانځه کول تر خپل طاقت لوړ وباله. حال دا چه خداي تعالی وايي: ﴿لاَ يُكَلِّفُ اللهُ نَفْساً اِلاَّ وُسْعَهَا﴾.

که چا وويل: زه ځان په ابتلاء کښي نه اچوم، يعني ده وويل: زه ځان په بلاء نه اخته کوم. يعني ده طاعت د خداي ﷻ بلاء وبلل، کافر سو، په سبب د اعتراض پر حکم او امر د خداي ﷻ، حال دا چه په اصل کښي گناه بلاء او ابتلاء ده، ځکه جناب شبلي رحمة الله عليه وايي: که مو کوم دنيا داره او مال داره شخص وليدي،ووايه: ﴿اَللهُمَّ اِنِّي اَسْئَلُكَ الْعَافِيَةَ﴾ که څه هم په طاعت کښي هر څومره تکاليف وي،ځکه طاعت ابتلاء ده په معني د اختبار او اِمتحان چه هم سړي ته عزت ورکوي، او هم يي خوار او سپکوي.

که چا وويل: تر څو به دا د بيکارانو او لټانو خلگو کار کوم، چه مراد يي ورڅخه لمونځ او طاعت کول وي.

او ووايي: چه دا پر ما باندي ډير سخت او گران دی. په دی خبرو کولو سره کافر سو، ځکه ده د الله تعالی ﷻ پر امر باندي اعتراض وکړي. يا يي دا کار پر خپل ځان باندي ده وس او طاقت څخه لوړ او زيات وباله، يا ووايي چه زه اعتراف کوم پر

دی باندي چه الله سبحانه وتعالیﷻ فرمايي: ﴿وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلاَّ عَلَى الْخَاشِعِيْنَ﴾ سورة البقره، آیت ۴۵ .ترجمه او تفسير د ايت په شروع کښي الله تعالیﷻ فرمايي: چه مدد او مرسته و غواړي په هره سختي کښي د الله سبحانه وتعالیﷻ څخه په صبر او لمانځه سره او په تحقيق سره دا لمونځ خامخا ډير سخت او درونډ دی. مګر نه دی درونډ پر عاجزي کوونکی باندي، د اهل کتاب عالمانو چه د حقانيت د ښکاره کيدلو څخه وروسته هم پر محمد ﷺ باندي ايمان نه راوړي د هغه لوي سبب د مال او جاه مينه او محبت وو. چه الله تعالیﷻ د دواړو علاج دلته وربنودلي دي. د صبر کولو په سبب د مال مينه او مرض ورڅخه ځي، او د لمانځه کولو په اثر بندګي او عبوديت او تذلل پيدا کيږي، او د لوي والي مينه کميږي، او په تحقيق لمونځ ډيردرونډ دی، مګر ندی درونډ پر عاجزي کونکي باندي ﴿تفسير الخازن﴾ ج ۱ ص ۴۷، همدارنګه په بل آيت کښي الله ﷻ فرمايي: ﴿ اَلَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُلاَقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ﴾ سورة البقره ايت ۴۶ . خوند د طاعت څخه اخيستونکي هغه څوك دي، چه يقين کوي چه بيشکه دوي مخامخ کيدونکي دي و خپل رب ته او په تحقيق سره دوي هم دد ته په اخيرت کښي بيرته ورتلونکي دي. ﴿ تفسير الخازن﴾ ج ۱ ص ۴۷

که چا وويل: د خداي امرونه څوك پاي ته رسولاي سي. کافر سو، په دليل د اعتراض کولو پر اوامرو د خداي تعالیﷻ.

که چا وويل وچا ته ولي لمونځ وکړم، مور او پلار خومي دواړه مړه دي. او يا يي دا وويل: ولي لمونځ وکړم، مور او پلار خو مي لا ژوندي دي. تر اوسه لا ندي مړه. په دواړو حالاتو کښي کافر سو، ځکه دد وجوب او فرضيت د لمانځه مربوط او معلق کړي پر وجود يا پر نيستئ د مور او پلار باندي.

که چا وچاته وويل: ولي لمونځ نکوی؟ ده وويل: دا دومره عمر مي لمونځ وکړي، نه مي څه زيات سول، او نه مي د لمانځه څه گټه وليدل، کافر سو. ځکه دده دا عقيده ده چه لمونځ نه ثواب لري او نه اجر زياتوي او نه يي په کولو کښي څه گټه سته.

که چا وويل: د لمانځه کول او نه کول دواړه يو شی دي په دواړو حالاتو کښي کافر سو، ځکه د فرضيت څخه د لمانځه منکر سو، ﴿زبدة الفتاوی﴾ د ﴿محمد بن يوسف القرماني﴾ لوحه: ۳۷۷ ،او د ﴿ابن قطلوبغا﴾ په کتاب ﴿ کفر ولم يشعر﴾ لوحه: ۶ کښي هم دغه شاني ويل سويدي.ددغو مسائلو لپاره دلايل او وجوهات سته. غيرله اخيري څخه. که دده دا عقيده وي چه د گناه او طاعت حکم يو شی دی په شريعت او حقيقت کښي، لکه چه الله ﷻ په قرآن عظيم الشان کښي فرمايي:

﴿ أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ سورة الجاثيه، الآيت ۲۱ .

ترجمه او تفسير د آيت: ايا گومان کوي هغه کسان چه کړي دي بد کارونه ﴿ د شرك او كفر﴾ ددی گمان کوي دوي چه وبه گرځو ومونږ دوي په اخيرت کښي په شان د هغو کسانو چه ايمان يي راوړيدي، او ښه عملونه يي کړيدي، برابر او يو شاني به وي ژوندون او مرگ د دوي، بلکي نه دي برابر،بد دي هغه چه حکم کوي دوي چي دا سره برابر دي. تفسير: يعني د الله تعالیٰﷻ د حکمت پر شؤنو له نظر اچولوڅخه وروسته ايا کوم عاقل داسي اټکل او گمان کولي سي، چه له يو بد عمله او يو صالح انسان سره به رب المنان څنگه يو شاني معامله وکړي، او ددغو دواړو اخيره خاتيمه به څنگه سره برابر کړي؟ داسي هيڅکله کيدونکي نده، نه دغه دواړه په ژوند کښي سره برابر دي او نه وروسته له مرگه سره برابر کيداي سي. او هغه د علو، نصرت، مغفرت او بخښني، وعدی چه دلته ورسره کړه سويدي. هغه د يوه بد کار کافر په برخه کله کيدای سي، د کفارو دپاره د دغي دنيا په ژوندانه کي د ژوند سختي او په عقباکښي علاوه پر دغه بيله لعنت او خسران څخه ورته بل شی نسته، ﴿الغرض﴾ دغه دعوه بيخي غلطه ده، او هم دغه

خیال بیخي غلط او چتي وبیکاره او مهمل دی.چه الله تعلیﷻ
به د ښو او بدو کسانو مرگ او ژوند سره یو شان کوي، د الله
تعالی ﷻ د حکمت مقتضی له سره داسي نده، بلکه ضرور دده
مصلحت او معدلت د هغو دواړو د اعمالو جزاء او سزاء به په
پوره او کامل صورت سره ورکړي. او ډیر صحیح او درسته
نتیجه به ورڅخه ښکاره کوي او د هر یوه د نیکي او بدي
«في الجمله» ځیني اثار هم دلته ظاهروي، مگر د هغوي پوره
مشاهده او معاینه وروسته له مرگه څخه کیږي.

په «جواهر الفقه» کښي راځي که څوك د فرضي شیانو څخه
منکر سي، لکه د لمانځه او روژي او زکات ورکول او د جنابت
د غسل کولو څخه بالکل منکره سي په همدغه انکار سره
کافرکیږي. «عالم بن العلاء ، فتاوي التتارخانیه » ج ٥ ص
۱۳۱ او د «فتاوي الهندیه، المرجع السابق» ج ۲ ص ۲٦۹.

«شارح علي قاري» وایي:که څوك د داسي حرام شي د حرمت
څخه منکر سي، چه د هغه حرمت په دلیل قاطع سره ثابت وي.
لکه د شرابو چښل او زنا کول او د انسان وژنه، او د یتیم مال
خوړل په ظلم سره، او سود اخستل،کافر سو، .

که چادیوه مسلمان څخه: وروسته د مسلمانیدو، پوښتنه
وکړل په باره کښي د پنځه وختو لمانځودنه کولو او د زکات د

نه ور کولواونوروشیانوپه باره کښي ده په جواب کي ورته وویل: زه نه یم خبر چه دا شیان فرض دي، کافر سو په دواړو حالاتو کښي.

شارح علي القاري صاحب فرمایي ،دا په لمانځه کښي ښکاره اوظاهره خبره ده،مگر په زکات کښي محموله پر بحث باندي ده .یعني هغه سړی کافر کیږي چه زکات ورباندي واجب وي .ځکه مسلمان ته لازمه او ضروري ده چه ځان دفرضي مسائلوڅخه باخبره کړي ځان بي خبره اچول یوه نوع دانواعوڅخه دانکار ده ،ځکه داخومعلومه ده چه جهل عذر ندي .

که چا ویوه فاسق ته وویل :لمونځ وکړه چه دایمان خوږوالي او خوند یي وڅکی، او حلاوت اوخوند یي ستا تر خوله سي اودغه فاسق په جواب کښي وویل :لمونځ نکوم غواړم چه دپریښودلو خوند مي تر خوله سي ،کافر سو،ځکه ده دگناه وخوند ته دایمان پر خوندباندي تر جیح ورکړل- یا یي گناه او ایمان یو شاني وبلل:

که چاوویل :که خداي تعالي پر ما باندي تردغه پنځو لمنځو څخه زیات پرنورولمونځو باندي امر کړي نه یي کوم ،یا ووائي که خدایتعالیﷻ مي دروژي دمیاشتي څخه پراضافه نورو روژوباندي امر کړي نه یي نیسم،او که راته

ووائي:ترڅلورمي څخه دعشر زيات زكات ورکړه .نه يي ورکوم،کافر سو،په دليل سره چي مخکي ذکر سو،

په فوزالنجات کښي راغلي دي،که چا وويل :دا څومره ښايسته او خوشبويه ښځه ده لمونځ دي نه کوي خوشبويي به يې ولاړه سي، کافر سو،.ځکه دده گناه او کونکي دگناه ښه وبولي :همدارنگه عالم بن العلاء الانصاري په خپل کتاب «فتاوي التتارخانية» ج،٥ ص ٥٢٢کښي دعلماؤپه اتفاق سره فرمايي،که چا دکفارو دکاروڅخه کوم شي ښه وباله کافردی.

په «فتاوي الصغري اوجواهر»کښي راغلي دي:که چا دامام سره په جماعت بيله اوداسه څخه قصداًلمونځ وکړي ،کافر سو ،ځکه جماعت دلمانځه شرط دي :خو بيله اوداسه څخه لمونځ کول گناه ده ،نو بايد داسي ووايو،که ددغه بی اودسه جماعت کونکی قصداًدلمانځه سپکاوی او مسخری او استهزاء کول يي مرادوي نو کافر کيږي :يا هغه وخت کافر ويلای سو ورته چه بي اودسه لمونځ کول جايز او روا وبولي، کچا قصداً وغير قبلي ته بلي خواته لمونځ کاوه کافر سو،په دي شرط که يي مراد ددغه لمونځ کونکی خندا او مسخري کول وي.يا يي دا نيت وي چه غير له قبلي څخه وهر طرف ته لمونځ کول روا او جايز دي:

که دچا څخه دقبلي طرف ورك وي اوبيا گمان اواټكل وكړي چي ودغي خواته قبله ده وهغي خواته دلمانځه نيت وكړي،ليكن بير ته په لمانځه كښي مخ ځيني واړه وي قصدا بيله كوم عذر څخه ،كافر سو،ځكه داټكل او گمان طرف عيناًحكم دحقيقي قبلي لري :په دغه مسئله كښي دعلماؤ اختلاف سته ﴿فتاوي الصغري﴾دحسام الدين عمر بن عبدالعزيز لوحه ۶:او كتاب د﴿ابن قطلوبغا﴾ من يكفر ولم يشعر﴾لوحه ۶ وگوري همدارنگه عالم بن العلاءاوابن نجم وايي: ځاي داختلاف دعلماؤپه دغه مسئله كښي دتكفير په باره كښي دادي . چه هغه وخت كافر كيږي كه ئي مقصد استخفاف او سپكاوي وي اوخندا په دين پوري دخداي تعالي ﷻ وي په نزد دټولوعلماؤ په اتفاق سره كافر دي ،

په يتيمه كښي راځي :كه چابی اودسه سجده وكړل يا ئي لمونځ وكړي قصدأدريا دپاره چي خلق ووائي دادي لمونځ كوی ،كافر سو ،او كه ئي دشرم او حياء په خاطر وكړل بيا نه كافر كيږي ،

كه چا رياء كول نيت وي او بي اودسي هم ور سره يوځاي كړي دا بيا لويه اوسخته گناه ده چه ورته ﴿معصية الغليذة﴾ وايي خو بيا هم دشبهي څخه خلاصه اوخالي نده ،لكه چه يو سړی

يوازي سجده کول بيله اوداسه څخه چي ډير يي روا او جايزه بولي او په کفر کښي اختلاف دي.
که چا لمونځ پريښودي دتهاون او سپکوالي په خاطر يعني لمونځ کول او نه کول ورته دواړه يو شاني وي څه اهميت نه ورته لري ، کافر کيږي ،او که دلټي په خاطر ورڅخه پاته سي نه کافر کيږي «ا بن قطلوبغا»په خپل کتاب «کفر ولم يشعر »کښي او «فتاوي تتار خانية»ج ٥ ص ٤٩٦ او «مغني»لابن القدامة ج٢ص٤٤٧ وايي:تکفير هغه وخت کيداي سي چه سړي لمونځ په خاطر دسپکاوي او مسخرو پريږدي ،او دعلماؤ اختلاف دي دلمانځه پر پريښودونکي باندي که يي دلټي او کسالت په خاطر لمونځ نه کاوه خو دلمانځه دفرضيت او وجوبيت څخه منکره نه وو ،امام ابو حنيفه وايي دغه سړی دي ووهل سي سزاء دي ورکړ سي مجبوره دي کړه سي يا دي بندي کړه سي ،څوبيرته ولمانځه کولوته مجبوره سي ،او جمهور وايي :ودي وژل سي-چه په دغه کښي هم اختلاف دي ،چه ايا په حد دکفر سره دي ووژل سي که څنگه؟ قول د« اسحاق بن راهويه»ابن مبارك او«احمدبن حنبل»وايي په حد دکفر سره دي ووژل سي ،دوهم ،قول د«امام بن مالك »او «امام شافعي» دی په دي باره کښي دپراخ بحث لپاره «بداية المجتهددابن رشد » ج ١ ص ٩٠

وگوري او﴿مغني﴾ دابن قدامة ج ٢ ص ٤٤٢ وگوری ،خو زه په دي موضوع کښي ښه دليل دا قول درسول الله ﷺ وړاندي کوم چه فرمايي﴿مَنْ تَرَكَ صَلاَةً مُتَعَمِّداً فَقَدْ كَفَرَ﴾ ددي حديث روايت ﴿طبراني ﴾ په اوسط کښي ج۴ ص ٢١١،کړی دی، چه معنی ددي حديث داسي ده چه ،رسول الله ﷺ وايي که چا لمونځ کول په قصد سره پريښودل کافر سو.

په محيط کښي راځي: که چا غير د قبلي څخه وبلي خوا ته لمونځ کاوه او پر دی باندي هم موافق ووچي همدغه قبله ده، او دا يي قصداً ويل پداسي حال کښي چه پوهيدی چه دغه د قبلي طرف ندی ﴿امام ابو حنيفه (رح)﴾ وا يي که يي دا خبره په استخفاف او سپکاوي سره کول، کافرسو. لکه هغه مسخري کونکی په دين پوري، يعني په ديکښي اشاره ده،و هغه چاته چي حلال بلونکی دحراموي او مسخري کوي په دين پوري داسلام. ﴿افقيه ابو ليث﴾

همدغه دليل نيولي دی او افتاء وړباندي کړيده.

يادونه: ﴿ فقيه ابوليث نصر بن احمد بن ابراهيم السمرقندي﴾ دی چه مشهور په ﴿امام الهدي﴾ دی. فقهي علوم يي د ﴿ ابي جعفر الهز واني﴾ څخه تر لاسه کړل. په علومو او معارفو کښي ده له حده زيات هلي ځلي وکړلي، لوي عالم او امام وزڅخه

جوړ سو. ډیر فتاوا وي او مفید تصانیف لري، چه د هغو د جملي څخه یي یو «تفسیر القرآن» دی په څلورو جلدو کښي. دوهم، « النوازل في الفقه» او «خزانة الفقه» او «تنبیه الغافلین» او بستان العارفین» دی، او په کال ٣٧٣ هجري کښي وفات سو، د نور ښه معلومات دپاره «جواهر المضیئه» د «ابن ابي الوفاء» ج ٣ ص ٥٤٤ وگوری.

که چا بئ اودسه لمونځ وکړی، یا یي په مردارو کالو سره لمونځ وکړی او پر پاکو کالو باندي قدرت هم درلودی. کافر سو، که یي دغسي بي اودسه لمونځ کول په مردارو کالو سره حلال باله ، او کنه دغه گناه ده داسي مثال لري لکه سړی چه لمونځ کول پرېږدي، په محضی پرېښیدلو سره سړي نه کافر کیږي.

که د چا څخه لمونځونه ډیر قضاء سول او ده وغوښتل چه د ټولو قضاء په یوه پلا سره راوړي، څوك ورته ووایي:

ولي داسي کوي؟ دی ورته ووایي: دا ښه ندي چه سړي وپوره وړي ته ټوله پور پر یوه ځاي په یوه پلا سره ورکړي او که لږ لږ ورکړه سي بلکي پر یوه ځاي ورکول ښه دي، کافر سو.

ځکه ده عبادت مشابه د پور او جرماني سره کړی. او صفت د کریم یي په غریم سره تبدیل کړی، «التیمة»نوټ،غریم وهغه چاته وایي چه دخلقو څخه جرماني ټولوي،

که چاوویل: د لمانځه سر نه مینځم، یامي د لمانځه سر نه دي پریولي، د دوارو خبرو ادا کول یو شی دي خو پکښې کفر نه لیدل کیږي، تر هغو پورې چه دده مقصد په لمانځه پورې استهزاء او مسخري کول نه وي، یعني که دده د خبرو معنی دا وي، چه لمونځ هیڅ شي ندي وکړه سي یا نه وکړه سي، یا ووایي: که یي پریږدم نو ورستیږي. یا به ورك سي په مخکه به ننوزي، نو بلا شکه په دغسي خبرو کښي د لمانځه سپکاوي او اهانت دي. چه په دغه ډولوکي کفرلیدل کیږي . ﴿ابن قطلوبغا، من یکفر ولم یشعر، لوحه ۶ او اعلام بقواطع الاسلام لابن الحجر الهیثمي ص ۶۲﴾

## علم او علماء

که څوك بیله سبب څخه پر عالم باندي په غضب سو، ور باندي بیره د کفر سته ﴿خلاصة الفتاوي لطاهر بن احمد البخاري﴾ لوحه ۳۵۶. همدارنگه کتاب د ﴿شیخ محمد بن عبد الوهاب، نواقض الاسلام﴾ وگوری.

موږ وایو چه کفر خویي ښکاره دی که څوك پر یوه عالم دین باندي بیله د نیوي اواخر وي سبب څخهورباندي په غضب سي، دده د غضب څخه معلومیږي چه دی د علم شریعت سره

بغض لري، نو د چاچه د شريعت څخه بد راځي په کفر کښي شك نسته. د شريعت څخه منکر په درجه اولي کافر دی، تر هغه چا چي ورڅخه بد يي راځي.په ﴿ فتاوي الظهيريه، کښي راځي. کچا ويوه فقيه عالم ته وويل: چه بريتونه يي خريلي يا کم کړي وي. عجبه بد ايسي دا چه بريتونه خريي دا خو بيا بيخي بد ايسي. لويه لنگوته تړلي شمله پر غاړه اچولي دا څومره بد معلوميږي، ويونکی ددغو خبرو کافر سو، ځکه ده د علماؤ سپکاوی او بي احترامي وکړل. د علماؤ سپکاوي او بي احترامي د انبياؤ سپکاوي او بئ احترامي ده: ځکه علماء د انبياؤ وارثان دي. او د بريتو کمول د انبياؤ سنت دي. بد بلونکي يي بيله اختلاف څخه د علماؤ کافر دی. ﴿زبدة الفتاوی﴾ لوحه ۳۷۷ او ﴿ بحر الرايق﴾ ج ۵ ص ۱۲۹.

په خلاصه کښي راځي: که چا خپل بريتونه کم کړل او لنگوټه يي وتړل، غوښتل يي په خپل دغه کولو سره د ملايانو چمونه وکړي، او پوري وخاندي او مسخري ور باندي وکړي پرده باندي يا دده پر علم باندي، کافر سو.

که چا وويل: دا د بريتو کمول او غټه لنگوټه تړل څومره بده معلوميږي، يا څومره بده ښکاري، کفر يي وکړي.﴿ الخلاصة الحميدي﴾

په ((محیط)) کښي راځي: که یو سړی یو لوړ ځاي کښېنستي او نورو د مسخرو او خندا په شکل ورڅخه پوښتني کولي، دغه سړي او هغو چه ور سره خندل یي ټولو کفر وکړی. په سبب د مسخرو او سپکاوي په شرع پوري، همدارنگه که څه هم لوړ ناست نه وي یو ځاي سره ناست وي ، داسي پوښتني استخفافاً په شرع او په عالم دین پوري ټوله په کفر کولوکښي سره شریکان دي،

د استاذ ((نجم الدین الکندري)) څخه روایت دی: که چا په یوه عالم یا معلم دیني پوري مسخري کولي او د هغه چمونه او پیښي یي کولي اود هغه معلم په شان یي هلکان وهله، ددي دپاره چه وخاندي او مسخري وکړي، کافر سو. ځکه معلم د قرآن هم د علماؤد شریعت د جملي څخه دی، نو مسخري او خندل په ده پوري

او دده په علم پوري کفر دی.

په (( الظهیریة)) کښي راځي : که چا د شرابو د څښلو مجلس جوړ کړی او پخپله د یوه عالم په شاني لوړ کښېنستی او خندل یي او مسخري یي کولي، نو کافر سو دی، او هغه کسان چه دده سره یي خندل، ځکه دغه شاني لوړ کښېنستل د دیني واعظانو کاردی، نو واعظ هم د علماؤ د جملي څخه دی او د انبیاؤ خلیفه دی. ((الظهیریة))

په «خلاصة » کښي راځي: که يو سړی د علم د مجلس څخه راغلی بل ورته ووېل: اخيراً راغلي، د کليسا څخه، کافر سو، ځکه ده ځاي د شريعت او د ايمان مقر يعني ځاي د کفر او کفران وباله. «خلاصة لطاهر بن احمد البخاري» لوحه ۳۵۷.

په «الظهيرية» کښي راځي: که چا وچا ته ووېل: راځه چه د علم و مجلس ته ولاړ سو. هغه ووېل: هلته څوك تلاي سي، يا يي ووېل: زه او دعلم مجلس زما يي د علم سره څه کار، کافر سو، «فتاوي التتارخانية» ج ۵ ص ۵۰۷ ، دلته دوي مسئلي سته، اول مسئله: چه ده ووېل: هلته څوك تلاي سي يعني زما تر طاقت لوړه ده. لکه څنگه چه الله ﷻ تعالی په شريعت کښي تر خپل زيات او بالابود کار ندی اچولی. لکه چه الله تعالی ﷻ په قرآن کښي فرمايي: «لاَ يُكَلِّفُ اللهُ نَفساً اِلاَّ وُسْعَهَا» سورة البقره، آيت ۲۸۶ .

دوهمه مسئله داده چه  ووايي زه په مجلس کښي د علم څه وکړم، يعني دده مقصد د مجلس توهين ندی بلکي خپل ځان يي ددوي لايق ونه باله په داسي حالاتو کښي بيا باك نسته، او که چيري د مجلس څخه مراد د شريعت اسلامي مجلس وي کوم چه هغه رسول الله ﷺ راوړی دی او دده مقصد د اوي چه زه و شريعت ته احتياج نلرم، بيا کافر کيږي،

په «جواهر» كښې راځي، كه څوك ووايي: دا كارونه د چا په وس او طاقت كښې دي كوم چه موږ ته عالمان وايي، كافر سو، «ابن قطلوبغا» په خپل كتاب «من يكفر ولم يشعر» لوحه ۷ او «فتاوي تتارخانيه، لعالم بن العلاء الانصاري» ج ۵ ص ۵۰۷.

دده كفر ځكه ثابتيږي چه دده د خبرو څخه دوه حاله معلوميږي، يو داچې: دی وايي چه عالمان پر موږ باندې زموږ د طاقت څخه زيات شی تحميلوي چه هغه زموږ تر طاقت لوړ دی، يا دا چه علماء دده په گمان درواغ وايي، د عالم تكذيب د نبي تكذيب دی، او دا خو ښكاره ده چه د نبي تكذيبول كفر دی.

په «يتيمه» كښې راځي، كه څوك چاته په مسخرو يا په رشتيا ووايي، چه د علم و مجلس ته ولاړ نسي كه ولاړې ښځه در باندې طلاقيږي يا درباندي حراميږي، كافر سو، ځكه په علم او علماؤ باندي استهزاء او مسخري كول كفر دي، «تتارخانيه» ج ۵ ص۱۳۲ او «بحرالرايق د ابن نجم» ج ۵ ص ۱۳۲ .

په فتاوي الصغري كښې راځي كه څوك چاته وويل :علم زده كړه هغه په جواب كښې ورته وويل:علم دڅه شي دپاره زده كړم ؟كفر يي وكړي ،ځكه دعلم سپكاوي يي وكړه او دي پدي عقيده دی چې زما وعلم ته ضرورت نسته ،يا يي داسي وويل :دعلم تر زده كولو خو يوه ډوډۍ راته ښه ده چه پيدايي كړم ،

كافر سو،دليل يي ښكاره دي ،«فتاوي الصغري » لحسام الدين الشهيد بن عبدالعزيز بن مازه ،لوحه ،۷ ،
په «ظهيرية » كښي راځي كه ددوونفرو پر يو شي باندي سره دعوه وه ،هغه يوه يو شرعي دليل را وايستی سره ددي چه هغه عالم هم وو هغه بل ورته وويل :ستا ملايي پر ما باندي نه چليږي، زه نه داخبري منم او نه يي هم كوم ،پر دغه باندي هم دكفر بيره ده ،ځكه دده په نزد دعلماؤدخبرو نه څه قدر سته او نه څه اعتبار سته او علاوه پر دغه بيا وايي ني كوم او ني قبلوم ،حال داچي دعلماؤ خبري بايد ومنله سي ،او قابل داعتبار او اعتمادوبلل سي :«فتاوي الهنديةالمرجع السابق » اوهم « ابن قطلوبغا»په خپل كتاب «من يكفر ولم يشعر» په لوحه ۷ كښي هم دغه مسئله ياده كړيده.
په محيط كښي راځي كه چا وويل: طلاق ملاق دي نه پيژنم بس غوارم چي دهلوكومور په كور كښي موجوده وي ،په دي خبرو دي زه نه پوهيږم چه طلاق واقع سو يا نه سو،ويونكی كافر كيږي ،ځكه ده حلال اوحرام يو شي وبلل ،«المحيط»
كه ښځي ته وويل سول :چه فلانكي عالم ،يا ملا ته به دي په نكاح وركړو ، يايي دپخوا څخه ميړه عالم وي ،دا ووايي دخداي ﷻلعنت دي پر عالم ميړه باندي وي :كافره سول

،ځکه دي دعلم پر ښه والي باندي لعنت ووایه اوهم يي دعالم او شريعت سپکاوي وکړي:

که چا و عالم ته ﴿عويلم﴾ يعني ملا ته يي ملاگی ووایه په یوه سپك نامه سره يي یاد کړی، چه مقصد يي د خپلو خبرو څخه د ملا او دده د علم سپکاوی او,ور پوري مسخري کول وي، کافر سو﴿فتاوي تتارخانيه﴾ ج ٥ ص ٥٠٨

﴿ قاضي امام الفضلي﴾ امر کړی دی په وژلو سره دهغه چا چه د علم فقهي او شريعت سپکاوي کوي، هغه وايي: یوه فقيه عالم خپل د فقهي کتاب په یوه دوکان کښي هیر سو ولاړي دوکاندار ور پسي رږغ کړل ، راسه دا اره دي واخله دا دي دلته پريښودل او ته ولاړي، دغه سړی کافر سو، ځکه ده علم د شريعت د یوه سامان سره مشابه کړی داسي سامان چه په هغه سره دنيوي کسب کيږي، او که چيري دغه کتاب د منطقوو بيانه په کافرکيږي، ځکه په شريعت کي د منطقي کتابو اهانت جايز بلل سويدی، حتی امام ابو حنيفه او ځينو نورو شافعانو په داسي کتابو د منطقو چه نوم د خدای ﷻ او رسول نوي پکښي استنجا وهل يي ورباندي جايزه بللي ده، حال دا چه امام ابو حنيفه په ساده سپين کاغذ سره استنجا وهل مکروه بللي ده که څه هم هيڅ نوشته نوي ورباندي. ځکه چه

اول خو پکښي د مال مصرفول دي په ناحقه سره دوهم حرمت
يي دادي چه د نوشته کيدلو لياقت لري چه ورباندي نوشته و
کړه سي، او دغه اوس زموږ په زمانه کښي کاغذ خوخاص د
دغه مقصد دپاره جوړ سويدی او نه هم قابليت د نوشتي لري،
او نه هم ورباندي زيات مال مصرفيږي چه د سړي اقتصاد دي
زيانمن کړي،
په محيط کښي راځي: دا قصه داسي راغلي ده چه يوه فقهي
عالم خپل يو کتاب په يوه دوکان کښي کښيښودي او د هغه
ځايه ولاړي، يوه ورځ هلته تيريدی، هغه دوکان دار وررنږغ
کړل، راسه هغه خپله اره دي يوسه، هغه ملا ورته وويل: ماخو
کتاب ستا په دوکان کښي ايښي وو آره مي نه وه ايښي،
دوکاندار ورته وويل: نجار په اره سره لرگي پري کوي، او
تاسو په کتاب سره د خلگو غاړي پري کوی، يا په کتاب سره
د خلقو حقونه خوری، دغه ملا ولاړی وقاضي امام الفضلي ته
يي شکايت وکړی، هغه دوکاندار راوغوښتی د هغه د وژلو
امر يي وکړی، ځکه چه دی په استخفاف او سپکاوي د عالم
او د فقهي د کتاب سره کافرسويدي،
﴿شارح امام علي قاري﴾ صاحب وايي: چه دغه مسئله د کتاب
مؤلف بدر الرشيد صاحب د امام برهان الدين د کتاب محيط
برهاني څخه را نقل کړيده، او زما په نظر داسي عجبه او

بیگانه غوندي معلوميږي ځکه په ښکاره لحاظ سره يي د وژلو کوم شرعي دليل نه ليدل کيږي. ﴿وَاللهُ اَعلَم﴾
په ﴿يتيمه﴾ کښي راځي: که چا د شريعت يا د شريعت دمسئلو سپکاوي او توهين وکړي، کافر سو.
که چاتيمم واهه اوبل دده پرحركاتوباندي وخندل، كافر سو،
که چا وويل: زه حلال او حرام نه پيژنم، کافر سو، ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿من يكفر ولم يشعر﴾ كښي دغه مسئلي راوړيدي.او فتاوي د ابو ليث سمر قندي په لوحه ۲٦۰ کښي وايي: که چا د الله تعالی ﷻ د محرماتو سپکاوي او بي احترامي وکړل ورباندي د کفر بيره ده، ليکن حکم د کفر ورباندي نسو کولاي يعني که چا د استعمال په وخت کي د حلال او حرام فرق نه سواي کولاي، او په دي عقيده وي چه حلال به وي که حرام دا بيا د جاهلانو څخه دی.
په محيط کښي راځي که يو عالم يو ځاي د علم بحث کاوه، چا ورته وويل: يو څه ښه د علم خبري وکړي، يا صحيح او ثابت حديثونه راته بيان کړه نه موضوعي احاديث، دا چه ته يي راته وايي دا خو زموږ په هيڅ درد نه خوري. داسي خبري راته وکړه چه په زده کولو يي يو څو پيسي يا عزت او احترام پيدا کړو، نن صبا عزت و احترام د پيسو دي، نه د علم. کافر سو. ځکه ده

د خداي تعالی ﷻ ددي قول معارضه وکړل چه فرمايي: ﴿وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَ لِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ سورة المنافقون ايت ۸ ،يعني خاص الله ﷻ لره دی عزت او غلبه او رسول دده لره عزت دی او خاص مؤمنانو ته، مطلب دا دی چه منافقان په دي نه پوهيږي چه عږت من اوزوره ور څوك دی؟ په ياد يي ولری چه اصلي عزت خو د الله تعالی ﷻ دی، وروسته د هغه چا لپاره عزت دی چه د الله ﷻ سره د علايقو درلودنکی وي، درجه پر درجه د خپلو مراتبو په اندازه د عزت درلودنکی دی. بيا د رسول الله ﷺ او د نورو مؤمنانو عزت دی، په روايتونو کښي راځي، چه (عبد الله بن ابي) داسي الفاظ ويل او داسي خبري کولي چه زوراوران به کمزوران شړي، کله چه دا خبره د هغه د زوي عبد الله بن عبد الله بن ابي وغوږو ته ورسيدل، چه هغه صادقه او سوچه مسلمان وو، نو توره پلاس د خپل پلار و مخي ته ودريدی، او ورته ويي ويل: ژرسه داسي ووايه، چه عزت مند او زوره ور رسول الله ﷺ او د هغه امتيان دي او زه او زما ملگري خوار او سپك او ذليل يو، کنه وايي همدا اوس دي په دغه توره سر در پري کوم،

د گيند په شاني به ستا په سر باندي بازي وکړم او ژوندی به دي پري نږدم چه مديني منوري ته ننوزي، همداوه چه پلار يي د رسول الله ﷺ او د مؤمنانو په عزت او په ذلت باندي اقرار

وکړی، او د خپل زوي ﷺ د قهره څخه یي ځان خلاص کړی ، د منافقینو د توبیخ او تقبیح څخه وروسته و مؤمنانو ته څو هدایتونه ورکړه سویدي، یعني د دنیا اشتغال تاسو د الله تعالیٰ ﷻ د یاده څخه غافله نکړي، لکه دغه خلق چه په دغه بد عمل د غفلت ککړ سویدي، ﴿تفسیر الکابلي، ج ۲ ص ۱۴۴۱﴾ ﴿قرطبي﴾ په خپل کتاب ﴿جامع الاحکام القرآن﴾ ج ۸ ص ۱۲۹ کښي وایي چه ددغه آیت شریف شان نزول هم دغه دی، چه منافقان په دي وهم او فکر کښي لویدلي وه چه عزت او احترام د انسان په مال او جاه وجلال پوري دی، خدایتعالیٰ ﷻ ورته ښکاره کړل یا داسي نده لکه څنګه چه تاسي فکر کوی، عزت د خدای ﷻ او مؤمنانو دی او ورکول او نه ورکول هم دده پلاس دي، همدارنګه الله تعالیٰ ﷻ ددین د ښه والي په باره کښي په قرآن عظیم الشان کښي داسي فرمایي: ﴿وَكَلِمَةُ اللهِ هِيَ الْعُلْيَا﴾ التوبه ایت ۴۰ ، یعني کلمه د الله د توحید او د اسلام د دعوت لوړه او غالبه ده همیشه، او الله ﷻ ښه غالب او قوي دی داحکامو په انفاذ کښي، یعني په اجرا کولو کښي ، او حضرت عبد الله ابن عباس وایي: د کلمة الله څخه مراد، کلیمة د﴿ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ الله﴾ ده چه دا تر ورځي تر قیامته پوري باقي او لوړه ده، ﴿جامع البیان﴾ ج ۱۰ ص ۱۳۷ .

كه چا وچاته د ﴿آمْرَ بِالْمَعْرُوْف وَنَهِي عَنِ الْمُنْكَرِ﴾ نصيحت كاوه، يعني په ښو يي امر كاوه او د بدو كارو څخه يي منع كوله، دابل سړي ورته وويل: نه دی په علم باندي پوهيږم نه خداي پيژنم ما خپل ځان د دوږخ دپاره اماده او تيار كړي دی، يا يي وويل: ما خپله بستره په دوږخ كښي غوړولي ده، كافر سو، ځكه يو يي د شريعت سپكاوي وكړي اوبل د خدای ﷻ د رحمت څخه نا اميده سو، حال دا چه الله تعالى ﷻ وايي: ﴿لاَ تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللهِ﴾ يعني د خداي تعالى ﷻ د رحمت څخه مه نا اميده كيږي، ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل كتاب ﴿من يكفر ولم يشعر﴾ كښي دغه مسئله را وړي ده لوحه ۷-۸،

په ﴿فتاوي الظهيرية﴾ كښي راځي: كه چا داسي وويل: په عمومي توگه چه ﴿درهم نلري درهم نه ارزي﴾ يا زموږ د پښتنو په اصطلاح چه وايي: ﴿غران نه لري غران نه ارزي﴾ كافر سو، ځكه دده د خبرو تر عبارت لاندي عالم او صالح او مؤمن اوغيرمؤمن ټوله راغلل،يعني دده په نظرداټول يوشي دي، اوكه داسي ووايي: زما مراد دغه دنيا داران دي په خپل ميانځو كښي بيا نه كافر كيږي، ﴿زبدة الفتاوي﴾ لوحه ۳۷۷

كه چا وچا ته وويل: څه علم د دين يا د قرآن زده كړه، او هغه وويل: اوس په دا آخير د عمر علم نه زده كوم، كافر سو، ځكه

چه د علم د زده کولو امر د ځانګو څخه بيا تر لحده پوري دی، ﴿فتاوي الهندية﴾ ج ۲ ص ۲۷۱ او کتاب د ﴿ابن قطلوبغا﴾ ،﴿من يکفر ولم يشعر﴾ لوحه، ۸ . که څه هم ددغي مسئلي دليل او وجوهات معلوم ندي، که يي دا مراد وي چه زه ديني او شرعي علوم نه زده کوم ضرورت او احتياج نه ورته لرم،په دغو علوموکښي داسي علوم هم سته چه زده کړه يي فرض عين ده،
که چا وعابد ته وويل: کرار کرار احتياط چه تر جنت تير نسي يا جنت شاته پرينږدي په خپل ډير عبادت سره، کافر سو، په سبب د مسخرو او استهزاء، د ﴿ محمد بن يوسف القرماني زبدة الفتاوي﴾ لوحه ۳۷۷ او کتاب د ﴿ ابن قطلوبغا ، من يکفر ولم يشعر﴾ لحه ۸ .
په جواهر کښي راځي که چا وچا ته وويل: که فلانکي قبله سي يا طرف د قبلي سي وهغي خواته لمونځ لا نکوم، کافر سو. ځکه دی داسي سو لکه ابليس چه د سجدي کولو څخه امتناع وکړل و آدم ته ؑ ځکه آدمؑ خدايتعالیﷻ په دغه وخت کښي داسي وګرځاوه لکه قبله.
که چا و يوه ښه صالح سړي ته وويل: ستا ملاقات او ليدنه داسي بده راباندي لګيږي، لکه د خنزير ليدنه او ملاقات، که د دوي په ميانځ کښي ديني او دنيايي دښمني نه وي، دا سړي

دي پر کفر باندي وبيريږي، ﴿خلاصة الفتاوي لطاهر بن احمد البخاري﴾ لوحه ۲۵۶-۲۵۷ ، او ﴿فتاوي الهنديه المرجع السابق﴾ ج ۲ ص ۲۷۰.

که چا وچاته وويل: راځه شرعي ته راسره ولاړ سه، که هغه وويل نه درسره ځم که لښکر هم راولي، کافر سو، په خاطر د عناد او دښمني د شرعي سره، ﴿ فتاوي التتارخانيه، لعالم بن العلاء الانصاري﴾ ج ۲ ص ۲۷۰،

هغه وخت دغه سړي کافر کيږي که انکار کول د تللو ځخه و شرعي ته په خاطر د عناد دده وو د شرعي او شريعت سره، اوکه يي دا مراد وي، چه درسره ځم خو خپله دښمني او دعوه به دلي سره خلاصه کړو، يا يي دا قصد وي چه دعوه دي صحيح ده، بيا شريعت او قضاء ته د تللو څه ضرورت دی، يا که اوس ولاړسو نو قاضي به نوي ناست، په دغه ټولو حالاتو کښي نه کافر کيږي،

په ﴿محيط﴾ کښي راځي: که چاوچاته وويل: راځه زما سره قاضي ته ولاړ شه، که هغه وويل، نه درسره ځم، نه کافر کيږي، ځکه امتناع او نه تلل و قاضي ته امتناع د شرعي نه ده، ځکه کيداي سي چه دغه قاضي برابر پر شرع باندي حکم نه کوي، يا ددي زماني د جاهلو قاضيانو څخه وي، چه د ځاي او مکان فرق کولاي نسي، ياپه قضيه باندي خو بيخي نا خبره وي د

هغه چا په حق کښي حکم صادره وي چه کالي يي سپين او جيبونه يي ښه گرم او تاوده وي ،
که چا و چاته وويل: راځه و شرعي ته راسره ولاړ سه، ده په جواب کښي ورته وويل: نه دی شرع پيژنم نه مي څه کار د شرعي سره سته، زه شرعه څه کوم کافر سو، همدارنگه هغه څوك کافر دی که يي وويل: شرع او داشيان نه ماته فا يده را رسولاي سي او نه هم پر ما باندي چليږي، کافر سو، ﴿فتاوي الهنديه المرجع السابق﴾ ج ٢ ص ٢٧٢. او کتاب د ﴿ابن قطلوبغا﴾ ﴿من يكفر ولم يشعر﴾
﴿په فتاوي الظهيرية﴾ کښئ راځي،که د يوه سړي پر بل باندي پيسي وي که، هغه يو ورته ووايي: زما پيسي راکړه، دغه ورکونکي ورته وايي، ښه دي شرعي ته راسره ولاړ سه، هغه بل ورته ووايي هغه وخت شرعه چيري وه چه پيسي دي اخيستلي؟ کافر سو، ځکه پر شرعي يي بد وويل او عناديي ورسره وکړي، او که يي مراد او مقصد د شرعي سره عناد او پر هغي باندي بد ويل نه وي، صرف دايي قصدوي څه وخت چه تا پيسي اخيستلي خو شرعي ته نه يو سره تللي او اوس يي بيله شرعي او قضاء څخه نه راکوي، دا خو ښه کار ندي، بيا پروا نلري، د کفر هيڅ بيره نسته، ﴿ابن قطلوبغا، او فتاوي الهنديه المرجع السابق﴾ ج ٢ ص ٢٨٣.

په محیط کښئ راځي: که چا د شرعي په مقابل په قصداً ناري او غال مغال کاوه په لوړ آواز سره، او شرعي ته یي بدي او ناکاره خبري کولي او شرع او احکام د شرعي په بدو نومو سره یاده کړل، کافر سو، که یي په طبعت کښي هم د شرعي څخه کراهت درلودی، «تتارخانیه» ج ۲ ص ۵۱۱.

حکایت دي وایي په زمانه کښي د خلیفه مامون عبد الله بن هارون الرشید چه د عباسي خلیفه گانو څخه وو په عراق کښي د ښه علم او ښو اخلاقو درلودنکی پاچاوو،دده پادشاهي د افریقا او خراسان تر پایه وغزیدله، په کال ۱۹۸ هجري د خپل ورور امین تر مرگ وروسته خلیفه سو، په کال ۱۷۰ هجري کښي زیږیدلي او په کال ۳۱۸ کښي وفات سو او په «طرطوس» کښي ښخ دی،

یوه ورځ خلیفه مامون د یوه څخه په دربار کښي پوښتنه وکړل هغه بزاز پر څه باندي ووژل سو، دغه سړي په جواب کښي ورته وویل: هغه ښایسته ښکلي مسته پیغله نجلی غوښتله، خلیفه مامون چه دا خبره واوریدل، پر دغه سړي یي امر وکړي دا ووژني او ویي ویل دا دهغه چا سزاء ده چه د شرعي په حکم باندي مسخري او ټوکي کوي، او د شرعي د حکم سپکاوي او

ورپوري مسخري او استهزاء کول کفر دي، ﴿نوټ﴾دغه سړي محصن وو زنايي کړي وه د شرعي په حکم سره وژل سوي وو، حکايت دي، د امير تيمور بن نجم الدين، چه هغه يوه ورځ ډير خوابدي او خفه ناست وو، درباريانو وغوښتل چه هغه خوشحاله اوو خندوي تر څو ددغه خفگان د حالت څخه يي وباسي او خوشحاله يي کړي، نو يو سړي په خندا و دربار ته ننوتي او ويي ويل: ما فلانکی سړی وليدی چه روژه يي خوړل او شاهدان هم لرم، قاضي وويل: کاشکي هغه بل بيا لمونځ خوړلی واي چه ورڅخه خلاص سوي واي، ددوي دا مقصد وو چه امير وخنده وي، امير نور هم په غصه سو، ويل بل شي مو نکړی پيدا غير له امور ديني وو څخه چه وربانديي وخاندی، د دغه سړي دو هلو امر يي وکړی تر هغو پوري يي واهه تر څو تر وهلو لاندي مړ سو،

خدايتعالی ﷻ دي پر هغو کسانو باندي ورحميږي چه دومره يي د دين د کار وعزت او احترام اوساتنه کوله، په شريعت او دين پوري مسخري او خندا کول ډير خطر ناکه کار دی په دين کنبي.قدرمنوځوانانومتوجه اوسي وخپلوخبروته

﴿ابن قطلوبغا،من يکفر ولم يشعر﴾

## ښکاره صريح کفر او کنايي کفر

په ﴿محیط﴾ کښي راځي که سړي وويل: زه مؤمن يم انشاء الله او دا خبره يي بي تاويله وکړل، کافر سو ځکه دی په خپل ايمان کښي متر دده او په شك کښي دی، او که يي خپل ايمان متعلقه په رضاء پوري د الله تعالیﷻ کړی، سره د تحقيق پر خپل ايمان باندي بيا پروا نلري، او که يي وويل: نه يم خبر چه د دنيا څخه به سره د ايمانه ولاړ سم او که بيله ايمانه؟ نه کافر کيږي، ځکه چه په غيبو غير له خدايه ﷻ څخه بل څوك خبر ندی،او که يي وويل: زه خبر يم چه د دنيا څخه به مؤمن يا کافر ځمه، بيا هم کافر کيږي، ﴿عالم بن العلاء الانصاري، د تتارخانيه مؤلف، او طاهر بن احمدي البخاري﴾ دخلاصة مؤلف وايي: که يو سړی وايي: چه زه مسلمان يم بايد درلودنکی د يوه ټينګ او جازم ايمان وي، بيله کوم تردد او شك څخه ، ﴿الحاقول﴾ د استثناء د يو شي په ايمان پوري يوه نوع د انواعو څخه د شك ده، چه خلقو دغه استثناء پر دري ډوله باندي تقسيم کړيده، يوه ډله يي واجبه بولي، او بله ډله يي حرامه بولي چه حتی د کفر و حالت ته يي رسوي لکه څنګه چه مو مخکي ذکر کړل، او دريمه ډله يي جايزه بولي، او په بل اعتبار سره يي منعه کوي، چه دغه صحيح قول دی، او جلا د هغه څخه دی چه په استثناء سره يي په ايمان کښي شك پيدا کيږي، چه داسي استثناء منعه ده، او که چا په دي خاطر

وويل: چه زه په عاقبت نه يم خبر او دا شيان په رضا پوري د الله ﷻ مربوط دي، او د استثناء ويلو سره د خپل ايمان څخه داډه او مطمئن وي، په دغه حالاتو کښي بيا استثناء جايزه ده، ﴿مجموع الفتاوي، لشيخ الاسلام ابن يتميه﴾ ج ٧ ص ٤٢٩ ﴿او شرح العقيده الطحاوية لابن ابي العزالحنفي﴾ ص ٣٩٥-٣٩٨.

په ﴿ظهيريه﴾ کښي راځي: چه امام الفضلي وايي: و مسلمان ته نه ښايي چه په خپل ايمان کښي استثناء وکړي، بايد ونه وايي: چه انشاء الله زه مؤمن يم، ځکه مسلمان په تحقيق سره د ايمان مامورہ دی، دغه ماموريت په تصديق او اقرار سره انجاميږي، او استثناء ضد د تصديق او اقرار ده او په ښکاره سره دغه تصديق او اقرار ماتوي، دی مسئول دحال څخه دی بايد فورا د حال جواب ورکړي او په اينده پوري مربوط نکړي چه دا ددي قول د اللهﷻ معنی ده چه فرمايي: ﴿ قُولُوٓا آمَنَّا بِاللّٰه﴾ د سورة البقري د ١٣٦ ايت ټوټه ده.

يعني ووايا ست ايمان مو راوړيدی پر الله ﷻ باندي، دا خبره بيله استثناء څخه وکړي، لکه څنګه چه الله تعالیﷻ د ابراهيم عليه السلام حال داسي راته بيانوي کله چه ابراهيم عليه السلام وويل: ﴿رَبِّي أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتَىٰ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن﴾ ای رب زما دا ماته راوښيئ چه ته مړئ څنګه ژوندي کوي، اللهﷻ ورته وويل: ته

مؤمن نه يي، ابراهيم عليه السلام بيله استثناء وويل: ﴿قَالَ بَلى﴾ بيله شکه مؤمن يم، داوو د سورة البقره ۲٦۰ ايت تړته.
﴿الشيخ عبد الله السبذ موني﴾ په خپل کتاب ﴿الکشف﴾ چه د امام ابو حنيفه په مناقبو کښي ليکي دی، وايي: د ﴿موسی بن ابي کثير﴾ څخه هغه د ابن عمر رضي الله تعالی عنهما څخه دوي پسه را وايستي دکوره چه حلال يي کړي، په دغه وخت کښي بل سړی تيريدی، و هغه سړي ته چه پسه يي حلالاوه، ويل ته مسلمان يي؟ هغه په جواب کښي ورته وويل: هو: انشاء الله تعالی ﷻ، ابن عمر ورته وويل: بس مه يي حلالوه،ستا په خپل ايمان کښي شك دی، بيا بل سړي تيريدی، هغه ته يي وويل: ته مسلمان يي؟ هغه وويل: هو مسلمان يم په خپل ايمان کي هيڅ استثناء ونکړل، نو ابن عمر ورته وويل: حلال يي کړه، عبد الله بن عمر وايي: که چا په خپل ايمان کښي استثناء کول هغه مؤمن نه دی، ﴿ الجواهر المضيئه لابن ابي الوفاء﴾ج ۲ ص ۴۷۵ . او نورو مشايخو د بلخ د مذهب څخه د امام ابو حنيفه ددي مسئلي تائيد کړيدی، د نورو معلوماتو دپاره مسائل ﴿البدريه﴾ وگوری. چه د ﴿فتاوي الظهيريه﴾ څخه راټول کړه سوي او منتخب کړه سويدي، دا خبره د يادوني وړ ده ، چه ابن عمر ډير احتياط کاوه په لاره د دين کښي، څکه ټوله سلف او خلف د علماؤ هيڅ يوه هم مؤمن په استثناء سره د

ايمان څخه خارج بللي نه دي صرف هغه څوك خارج بولي چه په تصديق كښي د خپل ايمان متر دده او شكمن وي.

په محيط كښي راځي: چه ځيني علماؤد سلفو په خپلو ايمانو كښي استثناء كول، د دوي عذر دا وو چه دوي په خاطر د شك دا استثناء نكوله چه د دوي په خپلو ايمانو كښي شك وو، بلكه پدي كښي استثناء كول كوم چه د مؤمن په صفت كښي په احاديثو كښي راغلي دي: لكه دا حديث د رسول الله ﷺ چه فرمايي: ﴿اَلْمُؤْمِنُ مَنْ آمَنَ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ، (البخاري، و مسلم)﴾ يعني حقيقي مؤمن هغه دي چه خلق يي د شره څخه په امان وي، همدارنگه په سننو كښي د ابن ماجه دا حديث راغلي دي: ﴿ قال رسول الله ﷺ اَلْمُؤْمِنُ مَنْ اَمَنَهُ النَّاسَ عَلى اَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ﴾ صححه الباني هذه الرواية في كتابه ﴿ابن ماجه ، ج ٢ ص ٣٤٩﴾ يعني مؤمن هغه څوك دي چه نور خلگ دى پر خپلو مالو او ځانو باندي امين وگرځوي، او بخاري او مسلم بيا بل حديث په دي الفاظو سره راوړيدي: ﴿اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ، ( صحيح البخاري مع الفتح) ج١ ص ٥٣﴾ او ﴿مسلم په شرح النوري، ج ٢ ص ١٢﴾ ترجمه يي داسي ده: مسلمان هغه څوك دى چه نور مسلمانان يي د ژبي او

لاس ځخه په امان وي، همدارنگه رسول اللهﷺ په بل حديث شريف کښي فرمايي:
﴿اَلْمُؤْمِنُ مَنْ آمَنَ جَارَهُ بَوَائقه﴾ دا حديث شريف بيا ﴿بخاري﴾ په بل لفظ سره ﴿وَ اللهِ لاَ يُؤْمِنُ وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ قِيلَ مَنْ يَا رَسُولُ اللهِ قَالَ اَلَّذِيْ لاَ يُؤْمِنُ جَارَهُ بَوَائِقَهُ﴾ (صحيح البخاري مع الفتح) ج ۱۰ ص ۴۴۳
رسول اللهﷺ وفرمايل: قسم مي دي په خداي وي، دا خبره يي دري واره تکرار کړل وروسته يي وويل: هغه څوك مؤمن ندی تر څو همسايه دده د ازاره ځخه په امان نه وي، او همداشاني د رسول الله ﷺ بل حديث دی چه فرمايي: ﴿لَيْسَ بِمُؤْمِنٍ مَنْ بَاتَ شَبْعَانٍ وَجَارَهُ طَاوٍ﴾ رواه طبراني، يعني هغه څوك ندی مؤمن چه دی په ماړه نس بيده سي او همسايه يي وږی وي، په بل حديث کښي راځي: که په چا کښي دغه اودغه خويونه نه وي هغه مسلمان نه دی، نو هغو امامانو چه استثناء کړي ده په دغه سبب يي کړيده چه ايا په دوي کښي دغه خصايل او خويونه موجود دي اوکه يا ځکه انسان د خپله ځانه ځخه خبر نه وي اوس دا خبره ښه ښکاره سول چه دوي په دی خاطر استثناء نکړل چه دوي په خپل ايمان کښي شك او شبه درلودل.اوس به بيرته لږ وروسته ولاړ سو، په مخ کښي حديث موږ وويل چه د مؤمن څو خويونه او خصلتونه دي ﴿ اَلْمُؤْمِنُ مَنْ آمَنَ النَّاسَ

عَلی دِمَائِهِمْ وَ اَمْوَالِهِم﴾ مؤمن هغه دي چه خلګ دی پر خپلو مالو او ځانو باندي امین کړي او بل دا ﴿ اَلْمُؤْمِنُ مِرآةُ الْمُؤْمِنِ وَالْمُؤْمِنُ اَخُوْ الْمُؤْمِنِ يَكُفُّ عَلَيْهِ ضَيْعَتَهُ وَ يَحُوْطُهُ وَرَائَهُ﴾ سنن ابي داود، ج ۳ ص ۹۲۹ یعني مؤمن د بل مؤمن هنداره ﴿اینه﴾ ده مؤمن د بل مؤمن ورور دي چه شي یي ورك سي مرسته او همدردي ورسره کوي او چه د باندي وي د کوره وتلی وي دده د کور او عیال ساتنه کوي،

هو: نه لکه د نن ورځي پنامه مسلمانان چه یو بل دده اخلاق او خوي وګوري نو دده هم د اسلام او مسلمانانو څخه کرکه او نفرت وسي. مسلمان باید د هنداري په شاني وي، یعني د ښو اخلاقو او خویو خاوندان وي، چه بل یو دی ووینی هغه هم دده په شاني ځان جوړ کړي، او دده پر نقش قدم باندي روان سي، داسي نه وي چه یوه مسلمان ته غم رسیدلی او هغه بل خوشحالي په کوي او د مرستي کولو پر ځاي ورباندي خانديي يو مسلمان باید د مسلمان ورور وي، راسی وګورو موږ ځانو ته مسلمانان وایو سره وروڼه یوکه یو د بل د سر دښمنان یو، ایا چه همسایه مو مسافر سي تر هر چا دمخه یي اول موږ د اهل وعیال او مال دښمنان نه یو؟ په داسي حالاتو کښي به خنګه و ځانته صادقه او رښتیني مؤمنان ووایو، په یوه حدیث کښي رسول الله ﷺ فرمایي: ﴿ زما د مرګ څخه وروسته داسي

كفار او گمراهان مه كيږي چه يو به پر بل باندي اسلحي سره را اخلی او يو د بل غاړي به سره پريكوی، راسی اي مؤمنانو اي مسلمانانو په خپلو گريوانو كښي وگورو چه نن موږ څنگه او پر څه حال باندي يو، «مترجم» دا ښه راته معلومه سول، چه د دغو امامانو استثناء د دوي د ايمان د كمال او احسان لپاره وه، نه دپاره د تصديق د زړه او اقرار د ژبي لپاره د تحقيق چه بحث يي سره د برهانه او دليل مخكي تير سو،

په «خلاصه» كښي راځي: كه كافر و مسلمان ته وويل: ددي اسلام څخه واوړه هغه ورته وويل: زما په اوښتلو به څه وسي و فلانكي عالم ته ولاړ سه هغه واړه وه، كافر سو، «خلاصة طاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۶» او «ابوليث سمر قندي» په خپله فتاوی كښي دا مسئله داسي ويلي ده، دا سړي ځكه كافر سو چه دبل مسلمان په كفر سره راضي سو، كه څوك د يوه ساعت دپاره هم په كفر راضي سي كافر دی، په يوه بل روايت كښي «فقيه ابو ليث» وايي: ما د امام جعفر څخه په دغه باره كښي پوښتنه وكړل، هغه راته وويل: نه كافر كيږي، «فتاوي د قاضي خان وگوری، ج ۴ ص ۴۶۹ » يا ددغه سړي كفر په دي سبب دی چه ويل ولاړ سه فلانكي عالم ته ځكه دی د هغه په كفر سره راضي سو، تر هغو پوري چه دی و هغه عالم ته ورځي

یا د هغه سره ملاقي کیږي، یا دده کفر په سبب دده د جهل دی په باره کښي د ایمان، خو دده رجوع بیرته و ایمان ته صرف په ویلو سره د شهاد تینو ده، ځکه ایمان اجمالي په اتفاق د علماؤ صحیح دی،

﴿ابن حزم﴾ وایي:که د چا په زړه سره پر ایمان باندي اعتقاد وي او په ژبه سره اقرار پر ایمان باندي کوي، پس په اتفاق سره همدغه ایمان دی، که استدلال وکړي یایي نه وکړي د خدایتعالی ﷻ اود مسلمانا نو په نزد مؤمن دی، په اثبات ددي قول د الله ﷻ چه فرمایي: ﴿ فَاقْتُلُواْ الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُواْ لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ فَإِن تَابُواْ وَأَقَامُواْ الصَّلاَةَ وَآتَوُاْ الزَّكَاةَ فَخَلُّواْ سَبِيلَهُمْ،، سورة التوبة، ایت ۵﴾ نو کله چه څلور محرمي میاشتي تیري سولي نو ووژني تاسو ای مؤمنانو هغه عهد او وعده ماتونکي مشرکان په هر ځای کي چه تاسو پیدا کړل دوي، او ویي نیسي قیدیان او بندیان یي کړی، او په قلعه گانو کښي یي محاصره کړی، او کښیني دویته منتظر په هر ځای د ښارلو او تیریدلو کښي، نو که دوي توبه وایستله له کفره ښخه او سم یي ادا کړي لمونځ سره د ټولو حقوقو او د خپلو مالو زکاتونه یي ورکړل، نو بیا یي پریږدی لاري ورته ازادي کړی، او ښه مه ورته وایاست، بیشکه چه الله ﷻ ښه بخښونکی د خطاوو دی، ډیر مهربانه دی

د اجر او ثواب او انعام په ورکولو سره، راسي اوس به ددغه لوړ آیت کریمه تفسیر درته وکړم، د استثناء د فراغت څخه وروسته، د مستثناء منه حکم بیانوي، یعني که څه هم ددغه عهد ماتونکي سره اوس هیڅ قسم معامله کول ندي پاتي او د هغوي سره سمدلاسه جنګ کول کیداي سي، خو بیا هم د ﴿اشهر الحرام﴾ د میاشتو د تیریدو تر وخته پوري پر دوي باندي فوری حمله مه کوی، ځکه اول په دغه څلورو محرمو میاشتو کښي جنګ کول ممنوع وه،یا مصلحت دا وو چه د یوي کوچني خبري په خاطر ولي د عامو خلقو په میانځ کښي تشویش پیدا کړه سي؟ چه په دغو میاشتو کښي د جنګ کول په دوي کښي حرام او مسلم وه، او د پخوا څخه دا یوه منل سوي خبره وه، په هر حال دمحرمومیاشتوترختمیدو پوري دي دویته مهلت ورکړه سی، چه هر ډول د دوي زړه غواړي هغه سي ترنونه او بندو بستونه دي سره وکړي، وروسته د جزیرة العرب د پاکیدلو څخه سوي، بله چاره نسته باید دا پاکه خاوره د دوي د ناپاکو قدمو څخه حتماً خلاصه سي، نو هغه ټولي معاملي په جنګ کښي کیدونکي دي، لکه وژل، چم او چل، او پلمي کول، منصوبي جوړول، په مورچو او پټو ځایو کښي د دښمن څارنه کول او نور، هو: که په ظاهره سره دوي د کفر کولو څخه توبه وباسي اوپه اسلامي اخوت کښی داخل

سي، چه د هغه لويه نخښه د لمانځه ادا کول او د ذکات ورکول دي، نو بيا به مسلمانان په هغوي باندي هيڅ غرض او تعرض به نه ورباندي کوي، اوددوي لاره به نه نيسي،او باطني معامله يي والله ﷻ ته ورسپارل سويده، د مسلمانو معامله به د دوي سره د ظاهري اعمالو پر اساس وي، له دی ايت څخه دا معلومه سول، که کوم سړی کليمه ووايي، او لمونځ ونکړي او زکات ورنکړي، نو مسلمانان د هغه لاره نيولای سي، د ﴿امام احمد او امام مالك او امام شافعي رحمة الله عليهم﴾ په نزد پر اسلامي حکومت باندي لازمه ده، که تارك الصلات توبه ونه کاږي ودي وژل سي، امام احمد وايي: دده وژنه په سبب د مرتد والي ده، او امام مالك او شافعي وايي په سبب د حد او تعزير دی ووژل سي، او امام ابو حنيفه رحمة الله عليه وايي: چه ښه دي ووهي، بيا دي تر هغو پوري په بنديخانه کښي بندي وساتي، چه يا د ترك الصلات څخه توبه وباسي يا هلته په بنديخانه کښي مړ سي، په هر حال همداسي ازاد پريښودل يي د هيچا په نزد نسته، پاته سول مانعين د ذکات يعني هغه کسان چه د خپلو مالونو ذکات نه ورکوي، ددوي د مالو څخه دی حکومت جبراً ذکات اصول کړي، که چيري دغه خلگ لاس سره يو کړي او د حکومت په خلاف وجنگيږي، ددي لپاره چه دوي سمي لاري ته راوستل سي، نو د دوي پر ضد دي جنگ

وکړه سي، حضرت «ابو بکر الصديق ﷺ» هغه جهاد چه د ذکات د مانعينو اونه ورکونکو سره کړي دي، د هغه واقعات د احاديثو او تاريخ په کتابو کښي مشهور او معروف دی، «مراتب جامع ابن الحزام، ص ۱۷۶»

«فقيه ابو ليث»وايي: دغه کافر چه ده ته وويل کافر سه، او هغه ورته وويل: و هغه عالم ته ورسه، په دغه استولو سره و عالم ته دی نه کافر کيږي، ځکه ددغه سړي دا فکر دی، چه عالم د اسلام په ښه والي ښه پوهيږي او زه نه پوهيږم په داسي حال کښي چه جاهل يوه لحظه هم په کفر باندي راضي نه دی، بلکه په پوره اتمام او کمال سره په اسلام باندي راضي دی، «فتاوي ابو ليث سمر قندي، لوحه- ۲۵۵»

په «جواهر» کښي راځي: که چا وچا ته وويل، چه ايمان څه شي دی؟ هغه وويل: نه يم خبر، کافر سو. «فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۵۴۸» دا مسئله وښه بحث او څيړني ته احتياج لري، شايدددغه پوښتو نکي مقصد يوازي حقيقت د ايمان وي، يعني د ايمان حقيقت څه شي دی، او حد د ايمان څه شي دی، حد په لغات کي وايي و منع ته او په اصطلاح کښي يوه داسي قول ته وايي چه مشتمل پر هغه شيانو وي چه دده سره اشتراك او امتياز ولري، او بل ايمان تفصيلي او ايمان اجمالي دی،

چه هر څوك تفصيلي او حد جامع الايماني نه پيژني، لکه څنګه چه الله ﷻ و خپل رسول اکرم ته په قرآن کښي داسي اشاره کوي، او ورته فرمايي: ﴿مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتَابُ وَمَا الْإِيْمَانُ﴾ سورة الشورى د ۵۲ آيت ټوټه، نه پوهيدلي ته چه کتاب څه شي دی، اونه په دي پوهيدلي چه ايمان او شرايع د ايمان څه شي دي، يعني ايمان او د ايمانيه وو اعمال څه شي دي؟، دغه تفاصيل چه اوس د وحي په ذريعه معلوم سويدي، پخوا له دي څخه تاته نه وه معلوم اگر که په نفس الايمان سره تل تر تله متصف وو، په اجماع د علماؤ مسلمان دي، ﴿عصمت الانبياء﴾

که چا د چا څخه پوښتنه وکړل: چه که چا د زړه د اخلاصه څخه په خوله کليمه د ﴿اَشْهَدُ اَنْ لاَّ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللهِ﴾ ويل اوپه زړه سره هم صادقه وو، وژل يي جايز او روا دي؟ که يا هغه وويل: نه يم خبر، کافر سو،

﴿محمد بن عمر بن الحسن فخر الرازي، ص ۲٦﴾

يو سړی ويوي ډلي ته راغلی، د يوه څخه يي د اسلام په باره کښي پوښتنه وکړل، چه اسلام څه شي دی؟ هغه په جواب کښي ورته وويل: نه يم خبر، يا صبر وکړه يا ويوه عالم ته ولاړ سه يا فلانکي ته ولاړ سه چه اسلام در وښيي يا د مجلس تر اخيره پوري صبر وکړه، کافر سو، يعني په ټولو صورتو کښي

جواب ورکونکي کفر وکړی غير له اخيري حالت څخه، کفر خو په ظاهره ښکاره دی خو په زړه يي يو الله ﷻ خبر دی.

په ﴿ظهيريه﴾ کښي راځي: که يوه کافر و مسلمان ته وويل: دا اسلام دي پريږده څه دي پکښي ليدلي دي، ده وويل: زه يي هم په صفتو باندي نه يم خبر ، کافر سو ، ځکه رضا په کفر سره په خپله کفر دی، او هم د بل چاپه کفر باندي رضايت کفر دی، مګر که په يوه شي کښي استثناء وکړل بيا کافر نه بلل کيږي، همدارنګه په ﴿ظهيريه﴾ کښي د حامدي څخه روايت دی چه رضا په کفر سره کفر دی، ﴿ العقود الدريه في تنقيح الفتاوی الحامديه لابن عابدين، ج ۱ ص ۹۹﴾ په دي مسئله کښي اختلاف هم سته هغه دا چه د مسلمان تکفير جايزندی،﴿ فتاوي الصغري ﴾ د ﴿حسام الدين عمر بن عبد العزيز بن مازه لوحه ۳۴۰﴾

په ﴿حاوي﴾ کښي راځي: که چا و يوه نفر ته وويل: ته توحيد پيژني؟ که هغه وويل: يا يعني اراده يي د نفي څخه د توحيد د الله ﷻ وو کافر سو ، ﴿ الحاوي للفتاوی الحصري لوحه ۷۴ او کتاب د ابن قطلوبغا ، (من يکفر ولم يشعر) لوحه ۹﴾ خو په دغه مسئله کښي دا بحث هم سته، که چيري د سوال کونکي مقصد يوازي حقيقت د توحيد مراد وي، يعني ته موحد يي که يا؟ پداسي حالت کښي بيا هيڅ تکفير ورباندي نسته.

په محیط کښې راځي: که مؤمن وویل: زه صفت د اسلام نه پیژنم کافر سو، «شمس الائمه الحلواني» ددغه سړي نه دین سته او نه یې روژه او لمونځ او نه یې هیڅ طاعت او عبادت او نه یې نکاح او اولادونه یې ټوله حرامي او ولد زناء دي، «فتاوي تتاخانیه، ج ۵ ص ۵۴۸» او «شیخ شمس الائمه الحلواني» په دې مسئله کښې نوره هم خیړنه او مبالغه کړیده هغه دا چه ده دغه مسئله د «محمد بن حسن» پر قول باندي قیاس کړیده، هغه وایي په یهودو کښې دا قاعده ده چه و یهودي یا نصراني ته وویل سي چه خپل دین راته بیان کړه، که یې وویل: چه نه یم خبر نو ورته وایي نه دا یهودي دیی اونه هم نصراني دی حکم یې حکم د مرتد دی

«فتاوی الهندیه المرجع السابق، ج ۲ ص ۲۵۷» خو په دي مسئله کښې دا خبره سته، که یو سړي د زړه له کومي ځخه په زړه کښې اسلام مانه او په ژبه یې اقرار هم کاوه، نو دا سړی بالاجماع مسلمان دی که څه په صفت د اسلام نه پوهیږي په نه علم درلودلو سره پر اوصافو، د اسلام ځخه نه وزي، دا داسي مثال لري لکه یو سړي چه یوشی وخوري او بل ورته وایي: چه څه شي دي وخوړل، دی ورته وایي داسي رنګ و داسي شکل او داسي خوند وو خو د اصلي نامه او نوعیت ځخه د شي خبر نه وي لیکن خوویخوړي، همدارنګه لکه څوک چه روژه

ونیسي او لمونځ وکړي، سره د ټولو شرطو اوارکانو لیکن یو
د بله سره یي نه پیژني او سره جلا کولاي یي نسي که پوښتنه
ور څخه وسي دا څه شي او دا څه شي وو، وایي نه یم خبر په
دغه ناخبري سره نه کافر کیږي، او که پر طریقه د علم کلام
والاوو ولاړ سو نو په دنیا کښي به مؤمنان نسي پاته مګر ډیر
لږ علم الکلام،لکه ﴿ عرفه ابن خلدون﴾ په وجود راوړي چه په
دیني عقایدو کښي د عقلي دلایلو څخه کار اخلي چه اکثره یي
مبتدعه او منحرفه وي خلاف د مذهبو څخه د سلف او اهل
سنتو، همدغه سبب دی چه علم الکلام پر اهل سنتو باندي
دروند دی، دا مثال یوه مغلطه ده وجاهلانو او ناپوهانو ته چه
رسول الله ﷺ د داسي مغالطو څخه ممانعت کړیدی دا
﴿حدیث ابو داود ﴾ روایت کړیدی: او دا قول چه اولاد یي اولاد
الزني دي. دا معنی نده چه دوي اطلاقاً اولاد زنا دي، لیکن
داسي دي لکه د زنا او حرامو اولاده، لیکن بیله شکه دوي
اولاد حلال دي، که وروسته تر سوال کولو توبه ونه کاږي او
بیرته اسلام ته رجوع ونکړي په هر تقدیر کفر یي لازم وحتمي
دی په نزد د ټولو علماؤ،

که یوه کوچني نصراني نجلي تر یوه مسلمان لاندي غټه
سول، نه لیوني وه او نه یي نور دماغي مرض او ناجوړي

درلودله، ليكن دي نه خپل دين پيژندي او نه يي هيڅ دين له اديانو څخه پيژندي او نه د اوصافو څخه د دين خبره وه، په داسي وقت کښي تابع و دين ته د ميره گرځي، ﴿فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۲۴۶﴾ وايي ددي خبري معني چه دا هيڅ دين نه پيژني يعني د هيڅ دين تصديق په زړه او اقرار په ژبه سره نکوي،

او که چيري عاقله او بالغه وي بيا مقلده د دين د مور و پلار ده، يا تابع ده د خپل ښار او کلي او وطن وخلقو ته کوم چه دا هلته غټه سوي ده،لکه څنگه چه رسول الله ﷺ په خپل دي حديث شريف کښي داسي فرمايي: ﴿كُلّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهُ أَوْ يُنَصِّرَانِهِ أَوْ يُمَجِّسَانِهِ﴾ يعني هر اولاد پر فطرت باندي پيدا کيږي، چه وروسته مور او پلارور څخه يهودي يا نصراني يا مجوسي ور څخه جوړ وي، نوکه نصراني وه نصراني ده ثابته پداسي حال کښي د ميره و دين ته نه مايله کيږي، څنگه د ميره دين ته مايله سي تر څو دا پر خپل اصلي فطرت باندي وي د نصرانيت.

همدارنگه: که يوه کوچني مسلمانه نجلي و بلوغ ته ورسيږي او عاقله سي ليکن نه اسلام پيژني اونه د صفت داسلام څخه خبر ولري، نو پداسي حال کي داهم وخپل ميره ته مايله ده ،

لکه څنګه چه مو مخکي دا خبره کړیده، چه دا لازمه او ضروري نده ویوه مسلمان ته چه باید ټوله احکام د اسلام وپیژني سره د ټولو اوصافو اجمالاً او تفصیلاً، پس د ایمان د تحقیق دپاره دومره کافي ده، چه تصدیق په زړه او اقرار په ژبه ولري،

که د یوچا څخه پوښتنه وکړه سي، که چا په رشتیا سره اسلام راوړي او مسلمان سو، ایا ددغه سړي مال او ويني حرامیږي؟ که يي وویل: هو، نو بیله شکه په ایمان کښي هیڅ شك نسته او حکم داحکامو څخه د اسلام يي وپيژنده، که څه هم د اسلام د ډیرو خبرو څخه بي خبره دی ځکه دده دغه ناخبرتیا واصلي مقصد ته هیڅ تاوان او ضرر نه رسوي، بیايي وویل: «شیخ شمس الائمه» دغه دواړي ښځي د خپل دین او ملت پر عقیده وي که څه هم دخپل دین څخه بئ خبره دي، چه پیژندنه د ملت ددین د ابتداء او بقاء شرط دي حال داچه دوي دواړي د تفاصیلو څخه د احکام اسلامي څخه ناخبره وي، نه دړلودل د یوه خاص دین او ملت دا ودیته اړ باسي که يي د نصرانیانو په میان کښي ژوند کاوه که ورته ووايي: ته په کوم دین يي نو حتما بیله شکه څخه به ووايي چه زه نصراني یم، همدارنګه که یوه غټي مسلماني ښځي ته ووايي: ته په کوم دین او ملت يي نو حتما به ووايي: چه زه مسلمانه یم، که څه هم هیڅ صفت د

اوصافو څخه د اسلام ونه پيژني، صرف ددوي دغه اقرار ددوي پر ملت او دين باندي دلالت كوي،
هو، كه چيري دوي دواړو ته وويله سي چه تاسو پر كوم دين ياست كه دوي وويل: موږ نه دين لرو نه ملت او نه د هيڅ شي څخه خبر لرو چه پر كوم دين او ملت باندي يو، پداسي حال كښي دوي دواړي په ښكاره توګه سره كافراني دي،
﴿الامام العلامه ابو عبدالله محمد بن حسن بن فرقد الشيباني، ملګري د امام ابو حنيفه چه علم فقه يي دده او ابي يوسف څخه حاصله كړيده﴾ دغه د لوړي رتبي امام محمد وايي: دغه دواړي مرتدياني دي كه څه هم موږ د دوي په اسلام باندي حكم وكړو په تابيعت سره وحال ته دميړه، ليكن اوس د دوي په كفر سره حكم كوو په سبب د فقدان د تابيعت او په سبب دنه پيژندني اونه معرفت د دين، چه همدغه د دوي د ارتداد سبب دى، وايم خبرتيا او معرفت د دوي ودين ته عطف دى پر تابيعت باندي او نه پيژندنه او نه معرفت ددين دى، څوك چه د دين څخه هيڅ شى نه پيژني نو بيا څنګه يي اهل دين بللاي سو يا څنګه و داسي اشخاصو ته اهل الايمان ويلاي سو، اما خبري كول د دوي په باره كښي دا چه مخكي مو وويل: چه دوي داسي دي لكه مرتديان او مخكښي مو د دوي داسلام حكم وكړي، كه څه هم دا يوه مغلقه او پيچلي مسئله ده، داچه ومو ويل: چه

دوي داسي دي لکه مرتدیان ځکه چه ارتداد فرع دایمان سابق ده، چه هغه په دوي کښي بیخي مفقود او نیستي دي، زه چه په دغه اوسني عصر او زمان کښي د دوي وحال ته گورم، دغه شاني مسئلي زموږ په دغه اوسني حال او زمانه کښي بیخي ډیر پیښیږي، خصوصاً په داسي دولتو کښي چه قضاء پکښي په بد حالت ککړه ده، د مثال په توگه یوه ښځه په دري طلاقه سره طلاقه سویده سره د دغه ښه دینداره ده، لمونځ کوي، قرآن وایي ، او د روژي دمیاشتي روژه نیسي، که قاضي ورته ووایي: د اسلام څه حکم اواحکام دي؟ دا به حتماً په خاطر د خپل جهل د احکامو څخه د دین داسلام ووایي نه یمه خبره چه همدغه خبره ددي په کفر باندي حکم کوي، او اوله نکاح یي باطلوي،باید د دوهمي پلا دپاره نکاح نوي کړي، که قاضي ددوي پر دغه بدکار باندي د کفر حکم وکړي، او که یي ونکړي ددوي سره یي ځان پدغه بدکار کښي شریك کړي، په دغه حال کښي به ددغه قاضي حال اُو حکم د هغه چا وي چه د بل په کفر راضي وي، په هر حال دغي بیچاري ښځي خو خپل حال اواحوال صاف او صریح ووایه ددي دپاره چه همداسي صاف جواب واوري، خو په دغه وخت کښي ددي ښځي دین او ایمان ددي زماني تر قاضیانو له هره جانبه ښه او قوي دی،﴿الشیخ الامام القاري صاحب﴾ فرمایي،داسي معلومیږي چه جناب

مؤلف صاحب به په دغه موضوع کښي مبالغه کړي وي ،ځکه ددي زماني په قاضیانو کښي خو علماء او فقهاءاو صالحان هم سته ، دښه روښانه کیدو لپاره ددي موضوع لطفاًدغه کتابونه او رسایل مطالعه کړي ،«الاعلام باعلام بیت الله الحرام للقطبي» محمد بن احمد النهر واني ،ص ۳۴۸ تر۳۵۳ پوري وګوري،او همدارنګه کتاب د« نشرالنوروالزهور» چه تصنیف دشیخ عبدالله مرداد،دی ص ۱۸۸ تر ۲۷۳ اوبل کتاب«فکرالسامي في تاریخ الفقة الاسلامي»تالیف دمحمدبن الحسن الحجري » دی ،ج،۲ ص ۱۸۹ څخه بیاتر ۳۷۳ پوري وګوری،

قاضي غواړي په دغسي کارو سره ورشوت اخستلو ته لاره جوړه کړي، پداسي حال کښي چه رشوت په ټولو حالاتو کښي حرام دی، او هم طلاق ورکول په دري سره حرام دی، «سعید بن مسیب» وایي د دغسي حالاتو په پیدا کولو شیطان د میړه او مایني تر میان د حرامو وسو سو داچولو لاره خلاصه کړي،وګوره د شیطان ونجسو وسوسوته، اول دی دمایني په تکفیر سره راضي کړي او د هغي بیچاري ټول طاعات او عبادات ضایع او حبطه کړي، دوهم دا قاضي خو د نوي نکاح حکم ورته کړیدي او دخپل ځان دپاره یي درشوت لاره جوړه کړیده، په داسي حالت کښي دی په حرامو ورسره جماع کوي،

په دلیل ددي قول د الله ﷻ چه فرمایي: ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ سورة البقره ایت ۲۳۰ .
که چا ښځه په دري طلاقه سره طلاقه کړل پس بیا حلاله نده دا ښځه ده لره پس لدینه چه په نکاح واخلي دا ښځه غیرله دغه خپل میړه څخه بل میړه، نوکه بیا دغه دوهم میړه دا په خپله مرضاء سره طلاقه کړل او بیا دي د خپل طلاق عدة تیره کړل نو بیا و اول خاوند ته یي په نکاح کول په خپله مرضي اوخوښي سره بیا څه گناه نلري، یعني که میړه وخپلي ښځي ته دري واري طلاق ورکړي، نو بیا هغه ښځه هیڅ وده ته نه روا کیږي، تر څو هغه ښځه د بل سړي سره نکاح ونه تړي او هغه نوي بل میړه ددي سره جماع ونکړي، او بیا په خپله خوښه سره طلاق ورنکړي او بیا دا د دغه طلاق عده تیره نکړي د اول میړه سره یي نکاح نکیږي، او کله چه یي دغه مراحل ټول طی کړل، بیا د اول میړه سره نکاح کولی سي، چه فقها ودغه ته حلاله وایي، او بل دلیل پکښي دا قول د رسول الله ﷺ چه فرمایي: ﴿لَا حَتَّىٰ تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكَ﴾ یعني دغه طلاقه سوي بیرته نه روا کیږي، تر څو د بل سړي سره نکاح ونه تړي او یو د بل خوند ښه وڅکي، دا حدیث بخاري روایت کړي دي. په فتح الباري کښي، ج ۱۰ ص ۲۶۴ دغسي کارونو کولو ته شرعي حیلي جوړول د ښو او قلمانو ښوئیدل دي چه

پکښي لوي ضرر دی، ودین ته د اسلام، نه دا چه قاضیان او مفتیان د دین د نړیدلو لاري جوړه وي، ترڅو خپل مقدس دین د څو پیسو رشوت په مقابل کښي خرخ کړي، او شیطان ته د وسوسو او فتنو د اچولو موقع برابره کړي، ﴿تفسیر د ابن کثیر، ج ۱ ص ۲۷۷ او جامع د احکام القرآن للقرطبي، ج ۱ ص ۱۴۸﴾

شرط د نکاح په ابتداء کښي خو اسلام دی او که دمخه نکاح کړه سوي وه په ځاي د جهل کښي د نکاح په صحت کښي هیڅ شك نسته، لکه په نکاح کښي د کفارو، د علماؤ پر دي خبره باندي په اجماع سره اتفاق دی، که میړه او ماینه دواړه په یوه پلا مسلمانان سول باید دواړه نکاح سره وتړي که کوم ممانعت د نکاح نه وو لکه رضاعت اونور، د کفارو په نکاح کښي اختلاف دی، ځیني علماء یي صحیح بولي، او بله ډله یي فاسده بولي، او بله ډله وایي باید سره جلا سي، ځیني علماء وایي: که شروط د صحت برابر سي نو هم هغه نکاح صحیح ده او کنه فاسده ده، دنور ښه معلومات دپاره ﴿مغنی لابن القدامه﴾ ج ۶ ص ۶۱۳ ، وګوری او ﴿فقه والسنة﴾ د سید سابق، ج ۲ ص ۲۰۳ وګوری،

دا خبره دیادوني وړ ده: که ددغه میړه او ماینی نکاح په زمانه کښي د کفر سوي وه نو پر قاضي باندي واجبه او لازمه ده چه د

ښځي څخه د میړه په باره کښي پوښتنه او دهغه د دین څخه ځان خبر کړي که هغه هم ددي په شاني کافروو، نو قاضي دی،د کفر اعلان وکړي او د کافر حکم دي ورباندي وکړي، او د ټول عمر طاعات او عبادات دي باطل وشمیري، بیا دي ورباندي اسلام عرضه کړي او دواړه دي کلیمه د شهادت ووایي، او احکام د اسلام دي ور وښودل سي، بیا دی ددوي تر میان نوي عقدو تړله سي، د ښه معلومات او تاکید لپاره د ﴿امام کمال الدین محمد بن عبد الواحد بن عبد الحمید المعروف بابن الهمام الحنفي﴾ فقه وګوری.

که چا یوه مینځه رانیول، یا یي یوه ښځه په نکاح کړل،بیا یي داسلام د صفت پوښتنه ورڅخه وکړل یعني ورته ویي ویل اسلام څه شي دی، که دغي ښځي په جواب کښني ورته وویل: نه یي پیژنم، نو نده مسلمانه ﴿مراد﴾ وایي ددي نه پیژندنه دا نده که دی توقف وکړي په جواب ورکولو کي چه ایمان او اسلام څه شي دی، لکه ځیني عوام د خپل جهل او ناپوهي په سبب محضي توقف هم کفر بولي، هغه داسي که دچا څخه پوښتنه وکړه سي چه ستا ایمان او اسلام څه شي دی هغه محضي توقف وکړي، دغه ناپوهان دغه توقف هم کفر بولي، بلکي مور هغه وقت جاهل او ناخبره د ایمان څخه ورته ویلای

سو که په باطن کښې هم د ایمان څخه یي هیڅ خبر نه درلودی، مثلاً که پوښتنه ورڅخه وکړه سي، ایا پسله مرګه څخه بیرته پاڅیدل او بعثت سته که یا؟ یا د رسولانو په رالیږلو اود اسماني کتابو په نزول پر نبیانو باندي هیڅ خبر ونلري او نه هم ورباندي اعتقاد او ایمان ولري ودغه ته ناخبرتیا او جهل په ایمان سره بلل کیږي، نه داسي ساده او بسیطه ناخبرتیا، لکه یو څوك د یو چا څخه پوښتنه وکړي، دا فلانکی شی پیژني او هغه ووایي: یا، او ته ورته فوراً ووایي چه ته خو نه مسلمان یي اونه په دارالاسلام کښي دي نشئت کړي دی، ځکه هر څوك چه په دارالاسلام کښي ژوند وکړي او هلته لوي سي حتماً باید د دغو شیانو معلومات حاصل کړي،

ما په کتاب کښي د «المضمرات» لیدلي دي چه هغه د «محمد بن حسن» څخه په جامع الکبیر کښي د یوي داسي مسئلي نقل کړي دی، هغه داسي ده لکه مخکي چه مو ذکر کړل، هغه دا چه که یوه ښځه صفت دایمان او اسلام ونه پیژني، نو محمد وایي: باید دده او ماینی تر میان یي جدایي راوستل سي، او که یي بیان ددغه وکړي یعني صفت د ایمان او اسلام یي وکړي، نو پوه سه چه دین دده پلاس کښي دی، او ویي ویل: دغسي مي ایمان راوړیدی او په خپل قول کښي صادقه وي نو د تقلید دحد څخه وزي او نکاح یي صحیح کیږي، اوکه یي وویل: نه

يمه خبره يا نه پوهيږمه، نکاح يي نه صحيح کيږي، د نور ښه معلومات دپاره ﴿جامع الکبير، د محمد بن حسن الشيباني﴾ وګورى، په ص ۹۴ کښي همدارنګه په مضمرات کښي راغلي دي که پر يوه ښځه باندي د کفر فتوى وکړه سي او حکم وکړه سي ورباندي په جلاوالي د خپل ميړه څخه نو دا کافره سوه په دمخه حکم نو مجبوره دي کړه سي دغه ښځه پر اسلام باندي او پنځه اويا چلاخي دي ووهله سي او دا بل ميړه نسي کولاي غيرله هغه خپل اول ميړه څخه، همدارنګه ﴿ابو بکر محمد بن الفضل، شيخ ابي جعفر او ابو جعفر بن عبد الله الا ستر وشني﴾ هم دغسي ويلي دي،

او ځيني علماء وايي و نکاح ته يي هيڅ ضررنه رسيږي او نه د نکاح ونوي کيدو ته ضرورت سته که بيرته و اول ميړه ته ورکړه سي،

ټوله علماء د بخاري وايي: ددي کفر نکاح يي نه خرابوي ليکن بايد پرنکاح باندي مجبوره کړه سي د خپل ميړه سره څکه دوي باالاجماع دا طلاق نه بولي، دغه اجماع طاهر بن محمد البخاري دى په خلاصة الفتاوى کښي ۳۵۴ او محمد بن يوسف القرماني دى په زبدة الفتاوى کښي ۳۷۴ ، او عدة ورباندي سته

﴿ طاهر بن احمد البخاري او حافظ الدين البزازي﴾ په فتاوي البزازي کښي دغه مسئله راوړيده، په ج ۶ ص ۳۲۲ ، او﴿ منهاج المصلين﴾ هم دغه مسئله په خپل يوه خاص درس کښي په صفحه ۲۲۹ ، کښي ذکر کړيده،

په خلاصه کښي: که چا وبل چاته په کفر سره دعاء وکړل، يعني ورته ويي ويل: خدايتعالیﷻ دي ددي دنيا څخه بي ايمان پر کفر باندي تير کړه، کافرسو، ځکه دی دبل په کفر سره راضي سو، د بل په کفر رضا په خپله کفر دی،﴿خلاصة الفتاوی، د احمد البخاري، لوحه ۳۵۶﴾ او امام ابي يوسف وايي: نه کافر کيږي، او ﴿شيخ ابوبکر محمدبن فضل﴾ دغه سي بد دعاء کول وکفر ته وايي نه په کافر کيږي،په دي کښي اوله خبره عامه

ده، اودغه جواب خاص دی ځکه دعاء کول وکافر ته په کفر سره سړي نه په کافر کيږي، بلکه و مسلمان ته په کفر سره ښراء کول چه خدايتعالی دي کافر کړه دا کفر دی، ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿من يکفر ولم يشعر﴾ کښي دغه مسئله په لوحه ۱۰ کښي راوړي ده، اوهم ﴿فتاوي تتارخانيه﴾ په ج ۵ ص ۴۶۰، کښي ددي مسئلي ذکر کړيدی، او که چا د خپل انتقام په خاطر داسي بد دعاء وخپل دښمن ته وکړل بيا نه کافر کيږي،

که چا و یوه مسلمان ته وویل: دا اسلام خو دي خداي درڅخه واخلي هغه بل ورته وویل: امین کافر سو، یایي وویل: د فلانکي مسلمان دپاره کفر غواړم، او یا غواړم چه فلانکي کافر سي، یا د فلانکي دپاره بل څه نه غواړم غیرله کفر بل شي، یا دي خدایﷻ ددي دنیا څخه کافر او بي ایمانه بوزي، یا دي خدایﷻ بي ایمان اوپر کفر مړ کړي، یادي خدایتعالیﷻ ابدي او همیشه اور د جهنم دده په نصیب کړي په ټولو حالاتو کښي کافر کیږئ، په دي شرط که یي کفر ښه باله او په راضي وو دځان لپاره: اوکه یي دغه خبري و ظالم ته په خاطر د انتقام کولي بیانه کافر کیږي،

په محیط کښي راځي: که څوك د ځان دپاره په کفر راضي سي، په اجماع د علماؤ کافردی، او د بل چا د کفر په رضایت کښي د علماؤ اختلاف دی، شیخ الاسلام وایي: د بل چاپه کفر باندي رضایت او خوشحاله کیدل هغه وخت کفر دی که ده کفر ښه باله او خوښ یي وو، او که یي خوښ نه وو او ښه یي نه باله بیا نه کافر کیږي، لکه څنګه چه یو سړی ووایي: زما د موذي او شریر سړي دپاره دا خوښه ده چه پر کفر باندي مړسي ددي لپاره چه خدایتعالیﷻ ورڅخه زما انتقام واخلي، په دغه وقت کښي نو بیا ویونکی نه کافر کیږي، ﴿زبدة الفتاوي، لمحمد بن یوسف القرماني﴾ لوحه ۳۷۳ . او ﴿فتاوي البزازیه﴾ ج ۶ ص

۳۲۹ ،که څوك په دي قول کښي د الله ﷻ فکر وکړي چه فرمايي: ﴿رَبَّنَا اَطْمِسْ عَلٰى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾ سورة يونس د ۸۸ ايت ترڅه، اى ربه زموږ مسخه کړي او محوه وهلاك راولي د دوي پر مالو باندي او سختي راولي ددوي پر زړو باندي، دوي تر هغو پوري ايمان نه راوړي تر څو پوري چه ستا سخت عذاب ونه ويني، نو ددغه آيت په دليل دا موږ ته معلومه سول چه وظالم ته ښراء او بد دعاء کول جايزه او روا کار دى، نو په همدغه سبب و ظالم ته داسي دعاء کول چه خداي ﷻ دي ددي دنيا څخه پر کفر باندي تير کړي، يادي خداي ﷻ بي ايمانه کړي، داته څومره ظلم او جبر د خداي ﷻ پر بندګانو کوي او تل لوي لوي ګناهونه کوي، او هيڅ رحم او ترحم نلري داسي بد دعاء کول و ظالم ته کفر ندى،

موږ د امام ابو حنيفه په يوه روايت کښي ليدلي دي چه د بل چا په کفر سره راضي کيدل او خوشحاله کيدل کفر دى بيله تفصيله څخه د، ﴿ابن عابدين﴾ په خبرو کښي په باره کښي د رضا پر کفرباندي په صحيح نصاب کښي راغلي دي، چه په رضا د کفر څوك نه کافر کيږي، او په ﴿غررالمعاني﴾ کښي راځي: هغه داچه زموږ دعلماؤ تر ميان په کفر کښي خلاف سته، يعني د بل په کفر رضايت او خوشحاليدل کفر دى، هغه

وخت کافر دی که یي کفر ښه ګڼي اوکه یي د کفر سپکاوی کاوه بیا کافر نسو ورته ویلاي،دغه جمله دامام ابو حنیفة ده ،چه فرمایي ،چه رضایت دبل مسلمان په کفر سره کفر دی ،نو شاید دغه جمله به دمحیط او جامع دمصنف هم وي ،نو په هر حال دغه دامام ابو حنیفه جواب دی،نو په مجمله توګه سره ویلاي سو چه دغه قواعدپر اصولودامام ابو حنیفه تفصیل کړو.

په جواهر کښي راځي:که چا وویل:دفلانکي سړي مرګ یا قتل مباح دی ،په داسي حال کښي چه نه هغه مرتد وي ،او نه یي هم څوك په ناحقه سره وژلي وي ،او نه هم محصن زنا کاره وي ،نو دغه سړي کفر وکړی ،ځکه چه دحرام حلال یا مباح بلل کفر دی،

راسی په لوړه مسئله کښي څه نور هم وړغیږو او تشریح ورکړو ،دهغه چا وژنه روا او حلاله نه ده چي هغه قطاع الطریقه نه وي او نه هم فساد او شر اچونکي وي په جامعه او ټولنه کښي ،دهغو کسانو مرګ او وژنه حلاله ده چه هغه قطاع الطریقه ،یعني «لاري شکونکي» وي په ټولنه اوپه جامعه اوکلي اووطن کښي شر او فساد اچونکی وي ،او هغه کسان چي دخلقو مالونه په زور اوجبراو ظلم سره غصبوي ،یا دخلقو مالونه په ناحقه اوظلم خوري ،او« امام الشافعي» «دتارك

الصلاة﴾ يعني د لمانځه پريښودونکي مرگ هم حلال او مباح بولي ،اوس موږ بايد ددغي مسئلي داثبات دپاره دقرآن عظيم الشان دغه آيت شريف د دليل په توگه سره وړاندي کړولکه څنگه چي الله ﷻ سبحانه وتعالي فرمايي:﴿انَّمَا جَزَاءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهُ وَيَسْعَوْنَ فِيْ الاَرْضِ فَسَادًا اَنْ يَقْتُلُوْا اَوْيُصَلَّبُوْا اَوْتُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهِمْ مِنْ خِلاَفٍ اَوْ يُنْفُوْا مِنَ الاَرْضِ ذَالِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الاَ خِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ﴾ سورة المائدة، ايت ٣٣، بيشكه همدا خبره ده چه جزاء د هغو کسانو چه جنگ کوي د الله ﷻ د دوستانو سره او د الله ﷻ سره او دده درسول سره او دوي تلاښ او کوشش کوي چه په مځکه او وطن کښي بد امني او فساد واچوي، نو دغه کسان دي ووژل شي يا دي په دار کړه سي، يادي پري کړه سي لاسونه او پښي ددوي، د مخالفو طرفو څخه يعني راسته لاس او چپه پښه يا چپه لاس او راسته پښه، يا دي وشړل سي د مځکي او وطن څخه په حبس او بنديتوب سره، يا دي دهغه ځاي څخه وبل ځاي ته ليري کړه سي، مذکوره جزا دغوغلو او بدکارانو ته په دي دنيا کښي رسوايي.ده، او سته دغو کسانو ته په اخيرت کښي عذاب ډير لوي،

اکثره مفسيرين له دغه څخه دلاري شکول او د خلقو وکورو ته د غلا دپاره ورلويدل مراده وي، مگر که دغه الفاظ پر خپل

عموم باندي پريږدو نو مضمون نور هم وسيع كيږئ، ددي آيت هغه شان نزول چه په صحيحو احاديثو كښي راغلى دى، هغه هم دهمدي مدعاپر مقتضى دى چه دا الفاظ پر خپل عموم باندي پريښودل سي يعني هغه كسان چه د اللهﷻ يا دده رسولﷺ سره جنگ كوي، ياپه مځكه كښي فساد او بدامني خپروي، دا دواړه لفظونه داسي دي چه په دي كښي د كفارو حملي او ارتداد، فتنى لارشكول، داړه اچول، په ناحقه قتل كول، نهب مجرمانه پلمي او منصوبي جوړول،دنن كاردرشوت په خاطروصباته معطله كول، اغوا كول، د خلقو او كوچنيانو تښتول، ضررمن او دشروفتنو ډك نشريات كول، همدارنگه خراب او مضر تبليغات هم پدغه كښي شامل دي، اوله دى څخه هر يو جرم داسي دى، چه دهغه مرتكب له دي څلورو سزاگانو څخه چه لوړ په ايت شريف كښي ذكر سول، ديوي نه يوي څخه حتما دهغي مستحق گرځي، دغلو احوال څلور صورتونه لري،

۱- چه مرگ يي كړي وي، مگر مال وړلوته يي وارنه وي رسيدلى نو داسي غله دي مړه كړه سي،

۲- چه هم يي مرگ كړي وي اوهم يي مال وړي وي، نوداسي غله دي وروسته تر وژلو په دار وځړول سي،

۳- چه مال یي غلا کړی وي، خو مرګ یي نه وي کړي، نو داسي غله دي لاس او پښه د مخالف طرف څخه ور پریکړه سي،

۴- چه نه یي وژل کړي وي او نه یي مال وړي وي، اودغلا د قصد او تیاري د نیولو څخه وروسته نیول سوي وي، داسي غله دي په بندي کولو سره د مځکي د مخ څخه ورك کړه سي، په دغه څلورو حالاتونو کي په ترتیب سره همدغه څلور سزا ګاني مقرره کړه سویدي، چه لوړئي په ایت شریف کي ذکر سویدی، دغلو فراره کول وبل لیري ځاي ته، او هلته بندي کول او قیدي ساتل یي زموږ د ﴿امام اعظم ابو حنیفه نعمان بن ثابت بن زوطي بن ماه ﷺ﴾ مذهب دی، قرطبي وایي: دغه ایت هغه وخت نازل سویدی چه مسلمانان به وتل اودکفارو لاري به یي نیولي اوپه مځکه کښي یي فسادونه خپرول، ﴿جامع الاحکام القرآن، ج ۶ ص ۱۴۹﴾

﴿امام ابو عبد الله احمد بن احمد بن حنبل الشیباني﴾ وایي: دلمانځه د پریښودنکي په ارتداد کښي خلاف دی، خو دی وایي: چه قتل او وژل یي مباح دي، او د ټولو په اتفاق سره ورته کافر نه ویل کیږئ،

که امیر یو څوك وواژه، چا وویل: چه په ناحقه سره یي مړ کړي، یا دغله و قاتل ته چا وویل: ډیر د سخا کار دي وکړي، یا دي بیخي ښه کار وکړي کافر سو،
که چا وویل: د فلانکي مال حلال دی،او هغه بل وویل: سره دما لکه، نو هر چاچه دغه ددوي خبري ورسره ومنلي ټولو کفر وکړی، په معلومو شرایطو سره، ﴿ابن قطلوبغا، من یکفر ولم یشعر﴾ لوحه ۱۰، او ﴿خلاصة الفتاوي لطاهر بن احمد البخاري﴾ لوحه ۳۵۴ او﴿ فتاوي تتارخانیه لعالم بن علاء الانصاري﴾ ج ۵ ص ۵۳۲ ﴿ الشفاء القاضي عیاض﴾ ج ۲ ص ۲۸۷،
که چا وچاته وویل: پرتا او ستا پر اسلام دي لعنت وي، کافر سو، په سبب د بد ویلو او سپکاوي پر اسلام باندي،
یو کافر مسلمان سو، یوه مسلمان یا ډیرو وهغه ته شیان ورکړه، بل مسلمان وویل: کاشکي زه هم کافر واي او مسلمان سوي واي خلقو به ماته هم شیان راکړي واي، په همدغه نیت کولو یا خبره کولو سره کافر سو، ځکه شرط د اسلام استقامت دی پر احکامو باندي، نو که چا نیت وکړی چه زه به په راتلونکي وقت کښي کافر کیږم في الحال کافر سو،
په ﴿محیط﴾ کښي راځي: که چا د وقت تعین پکښي وکړی، یایي په زړه کښي دا تمنا وکړل چه زه به کافر کیږم او په خوله یي هیڅ تلفظ نه وي کړی فورا کافر سو ځکه ځاي د تصدیق

خو زړه دی او موضیع دایمان په تحقیق سره ده، «فتاوي قاضي خان، ج ۴ ص ۴۶۷»
په «خلاصة» کښې راغلي دي، که دچا پلارکافروو مړ سو، اوډیر مال او جایداد یې پرېښودی، زوي یې وویل: کاشکي نه واي مسلمان سواي اوس به مي د پلار میراث وړی واي بیا به مسلمان سوي واي، په همدغه تمنا سره کافر سو، ځکه ده تمنیٰ او غوښتنه د کفر وکړل، «خلاصة الفتاوی لطاهر بن احمد بخاري، لوحه ۳۵۶» دکتاب مصنف دغه مسئله توري په توري را نقل کړیده،
په «جواهر» کښې راځي: که چاداسي وویل: کاشکي نه واي مسلمان سوي تر څو دا میراث را رسیدلي واي کافر سو، «خزانة الفقه، ابو اللیث سمرقندي، لوحه ۳۵۶»
په «فتاوي الصغری» کښې راځي: که چیري یو کافر مسلمان سو، بل مسلمان ورته وویل: تر هغو به نه مسلمانیدلاي چه پلار دي مړ سوي واي خپل میراث به دي اخیستي واي، بیا به مسلمان سوي واي، دغه مسلمان و یونکي کافر سو، «فتاوي الصغری، لحسام الدین عمر عبدالعزیز» لوحه ۳۳۴،
په «محیط» کښې راځي: یوه مسلمان یوه نصراني ښایسته چاغه ښځه ولیدل، ویل: کاشکي زه هم نصراني واي ددغي نصراني ښځي سره به مي واده کړي واي، کافر سو، «بحر

الرایق، ج ۵ ص ۱۳۳، او ﴿فتاوي تتارخانیه لعالم بن العلاء الانصاري، ج ۵ ص ۵۱۹﴾

مصنف وايي دابه لوي حماقت او بي عقلي وي چه مسلمان ته د اروا او جایزه وبولو چه د یوي چاغي ښایستي نصراني سره واده وکړي، ځکه په مسلمانانو ښځو کښي د حسینو او ښایسته وچاغو ښځو څه کمي خونده، لکه چه الله ﷻ په قرآن کښي فرمايي: ﴿ اَلزَّانِي لَا يَنْكِحُ اِلَّا زَانِيَةً اَوْ مُشْرِكَةً﴾ سورة النور د دریم آیت تړته،

زنا کاره سړی نه نکاح کوي په رغبت او محبت ومینه مگر زنا کاره ښځه یا مشرکه ښځه، الله ﷻ په دي آیت کښي مورِته د زنا بدوالي بیان کړي دی، یعني هغه نر او ښځه چه په دغه بد عادت سره مبتلاء وي په حقیقت کښي ددي خبري وړ او لایق او مستحق ندي، چه د هغه سره د کوم پاك عفیف مسلمان دازدواج او ناستي وپروتي تعلق قایم کړه سي، دهغه د بد او پلیت طبیعت او میلان سره خو دغه مناسب دي چه له همداسي بدکاره او تباه حاله نارینه یا ښځي سره یا ددوي څخه د بدتره دکوم مشرك یا مشرکي سره دهغه تعلق وکړه سي، لکه چه الله ﷻ د قرآن کریم په یوه بل آیت کښي فرمايي: ﴿ اَلْخَبِيْثٰتُ لِلْخَبِيْثِيْنَ وَالْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيْثٰتِ وَالطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالطَّيِّبُوْنَ

لِلطَّيِّبٰتُ﴾ يعني بدي ښځي د بدو خلقو دپاره دي او بد خلق د بَدو ښځو دپاره دي او پاکاني ښځي دپاکو خلقو دپاره دي او پاك خلق د پاکو ښځو دپاره دي، يو شاعر هم په خپل شعر کښي وايي: کوي جنس د خپله جنس سره ساز، هم کوتره له کوتري، باز له باز، دده د حرکت اصلي اقتضاء خوهم دغه وه، اوس دغه بيله خبره ده چه اللهﷻ د نورو مصالحو او حکمتونو له وجي کوم په نامه سره مسلمان عقد هم له مشرك او مشركي سره جايز ندی، يا مثلا که د کومي صالحي او نيکي ښځي نکاح د کوم بد کاره سړي سره وتړل سي، نو دغه نکاح بالکل باطله نده خو درول کيداي سي،
يادونه: ددغه آيت ترجمه او تقرير چه مورِ وکړی، بيخي اسانه او بي تکليف دی په دغه کښي د﴿ لاَيَنْكِحُ﴾ معني داسي نيول سويده لکه چه خلق په خپلو خبرو او محاورو کښي وَايي، ﴿ اَلسُّلْطَانُ لاَيَكْذِبُ ﴾ يعني پاچا درواغ نه وايي، يعني د فعل دلياقت نفي ته د فعل د نفي حيثيت ورکړه سويدی،﴿ فَافْهَمْ وَاسْتَقِمْ،﴾ ﴿القرآن الحرمين بلغة البشتو﴾،
که چيري داسي يو سړي وو، چه د مسلمانانو سره کښيني وايي ملسمان يم، اوکه د نصرانيانو سره کښيني وايي نصراني يم، که د يهودو سره کښيني وايي يهودي يم، داسړی کافر

سو، یعني زندیق دی، یعني چه روښنايي په تاریکیو سره پټوي، یا زندیق وهغه چاته ویل کیږي چه پر اخیرت او ربوبیت باندي ایمان ونلري، یا هغه څوك دی چه کفر پټوي او ایمان ښکاره کوي، ﴿مرقاة المفاتیح القاري، ج ۹ ص ۹۷﴾
په خلاصه کښي راځي: که چا ویوه مسلمان ته وویل: چه هغه مسلمان سوي وو، په خپل پخواني دین کښي دي څه ضرر او تاوان ولیدی؟ چه هغه دي پریښودی مسلمان سولي، کافر سو،
که چا وچاته وویل: دا زمانه د کفر ده ددي نه ده چه سړي مسلمان سي، کافر سو، ځکه دی غواړي چه کفر حاصل کړي نه اسلام، اوکه یي داسي وویل: په دي زمانه کښي غلبه دکفر او جهل ده، او اهل اسلام اود علم خاوندان ضعیفه سول، بیا نه کافر کیږي، ﴿خلاصة الفتاوي لطاهر بن احمد البخاري﴾لوحه ۹۴، په ﴿فتاوي قاضي خان او فتاوي الصغری﴾ کښي راځي: که یو چا د خپل اسلام اظهار او اشتهار وکړي، بل یوه ورته وویل: ته دمخه مسلمان نه وي؟ که هغه وویل: یا، کافرسو. ﴿فتاوي قاضي خان﴾ ج ۴ ص ۴۶۶،
که چا وخلقوته وویل: چه فلانکی مسلمان نه دی یعني کارونه بي د مسلمانانو په شان نه دي د ځینو علماؤ په نزد دغه کفر

ندی،﴿ فتاوي الصغری، لحسام الدین، عمر بن عبدالعزیز﴾ لوحه ۳۳۷،

په محیط او جواهر کښې راځي: که چا یو څوك واهه هغه ورته وویل: مسلمان نه یې چه ماپه دومره بې رحمي سره وهې، که قصداً يې وويل: چه يانه يم، كافر سو، اوکه په خطا ورڅخه وویل سول: بیا نه کافر کیږي، ﴿بحرالرایق﴾ دابن نجم، ج ۵ ص ۱۳۳، اوکتاب د ﴿ابن قطلوبغا، من یکفر ولم یشعر﴾ لوحه ۱۱،

که چا پر چا باندي ظلم اوجبر او تجاوز کاوه، او هغه ورته وویل: ﴿اِتَقِ اللہ﴾ یعني د خدایتعالیٰ ﷻ څخه وبیریږه اوده په جواب کښي ورته وویل: زه ستا خبري نه اورم یایي وویل: زه د خدایه ﷻ څخه نه بیریږم کافرسو، همدارنگه که چا ډیر بد او حرام کارونه کول، چا ورته وویل: دغه حرام کارونه پریږده، د خدایتعالیٰ ﷻ څخه وبیریږه، که ده وویل: نه بیریږم، کافر سو، اوکه هغه داسي کار وو چه حرام نه وو غیر مستحب وو بیا نه کافر کیږي، اوکه یې دغه خبره په شکل دسپکاوي او استخفاف وکړل بیا کافر کیږي، باید ماینه یې ورڅخه جلا کړه سي، ﴿فتاوي الیتیمه﴾

که چا وچاته په یوه کار کښي وویل: ایا ته د خدایتعالیٰ ﷻ څخه نه بیریږي چه داسي کوي، که یې وویل: یا، کافرسو.

محمد بن سعید ابوبکربلخي چه د بلخ د فقهاؤ علماؤ څخه د حنیفي مذهب دی وايي: که چا ویوه سړي ته وویل: ایاته د خدایتعالیﷻ څخه نه بیریږي که هغه په غضب او قهر وغصه سره وویل: یانه بیریږم کافر سو،ماینه دي ورڅخه جلا کړه سي، ﴿فتاوي قاضي خان، ج ۴ ص ۴۶۶، او فتاوي البزازیة، لحافظ الدین البزازي، ج ۶ ص ۳۴۷﴾

په ﴿محیط﴾ کښي راځي که یوي ښځي وخپل خاوند﴿میړه﴾ ته وویل: ستا به نه غیرت او نه دین وي که په دي باندي راضي سولي چه زه د بیگانه خلقو سره خلوت وکړم، که یي سړي وویل: زه نه غیرت لرم اونه دین، کافرسو، په همدغه خبره سره چه ویل یي زه دین نلرم دی د اسلام څخه ووتلي، ځکه ده اقرارا و اعتراف وکړی چه زه ایمان او دین نلرم، لکه څنگه چه په اقرار سره ودین ته داخلیږي، همداسي په اقرار کولو ورڅخه خارجیږي، په دي وقت کښي بیا دا خبره برابره او یوشان ده چه دده اقرار کول شرطًا وي اوکه رکنًا وي، خو د علماؤ په دی خبره کښي اختلاف دی چه د شهادتینو ویل داسلام شرط دی یا داسلام چت دی، نه ساقطیږي ورڅخه ترڅو انسان يي د ویلو څخه عاجزه نسي، یا دغه دواړه کلیمي دشهادت شرط دي دپاره د اجراء د ظاهره احکامو د اسلام فقط، او جناب شیخ علی قاري دغه مسئله تر بحث لاندي

نيولي ده او وايي: چه اقرار درلودنكي دښه اعتبار دي خوداچي اقرار چت او سطحه دايمان ده په دي كي خلاف سته، ځكه چه ځيني اوقات ساقطيږي او شرط داحكامو دايمان دي، لكه څنگه چه دغه خبره علماؤ ته عيانه او معلومه ده، چه امام ابو حنيفه هم ودغه طرف ته مايل دی،

كه چا وچاته وويل: ته خوارزمي يي اوكه مجوسي يي، كه هغه وويل: مجوسي يم، كافر سو، يادونه: خوارزم دفارس دښارو څخه يو ښار دی چه مخكي هلته مجوسي دين مروج وو،

كه چا وچاته وويل:ايا ته مسلمان نه يي؟ هغه وويل: يا، كافر سو، اوكه يي په جواب كښي ورته وويل: هو، داغسي يم لكه چه تاوويل، يايي وويل: كه داسي نواي نوتازه د ځان سره پريښودلم يعني د خپل ځان سره دي د اوسيدلو اجازه راكول، دا ټوله يوه خبره ده په معنی كښي خو صرف په تلفظ كښي څه توپير سته «فتاوي البزازية» ج ۶ ص ۳۳۰،او بحر الرايق، د ابن نجيم، ج ۵ ص ۱۳۲

په «محيط» كښي راځي: كه چا وچاته وويل: يا كافره، يا مجوسي، يايهودي، يا نصراني او ده په ورين تندي او خوشحالي ورته وويل: لبيك، كافر سو، ددي معنی داسوه چه

دغه دین او افعال دده په نظر ښه او قابل داحسان دي یایي
لبیك په دي خاطر ورته ووایه، چه هر کله راسي زه هم ستا په
شاني یم، قاضي خان وايي: که داسي وي،نو په دغه فرق
درلودلوسره نه کافر کیږي، ﴿قاضي خان، ج ۴ ص ۴۶۶﴾
په ﴿محیط﴾ کښي راځي: که چا وچاته وویل: که زه یهودي یا
نصراني یا مجوسي یم نو زما سره ناسته او ولاړه مکوه،
ښکاره خبره ده چه دی کافر کیږي، ځکه چه دا موضوع متحقق
الوقوع ده، اوکه ده دا خبره یا موضوع دبل مقصد دپاره
استعمالول یايي دا قصد وي، کچیري زه داسي یم نو زما سره
ناسته ولاړه مکوه بیا نه کافر کیږي،
که چا ویوه سړي ته وویل: ای کافره، هغه مخاطب چپ سو او
هیڅ یي ونه ویل، فقیه ابو بکر بلخي وايي کافر کیږئ،
همدارنګه لعنت ویونکی او ښکنځل کونکی کافرکیږي او
ځیني نور مشایخ دبلخ وايي نه کافر کیږي، بیا دبخاري دځینو
نورو علماؤ فتوی وبلخ ته راغلل، چه هغو هم ویلي وه چه کافر
کیږي، ټول و فتوی ته د ابي بکر تللي وه اوهم یي فتوی
ورکړي ده پر کفر باندي د ښکنځل کوونکي ﴿م البخاري﴾
دلته دا ویلاي سو چه شاید سکوت او چوپتیا د مخاطب حکم
وي پر رضایت باندي او پر اقرار باندي او باالا خره دا احتمال
هم سته چه دی په سبب د زیات قهر او غضب چپ وي، یا په

خاطر د حلم چپ او ساکت وي چه باالاخره به موضوع و مرافعه ته وړاندي کړي،
که چا وخپل دښمن ته هر وقت ویل چه تا غوندي شي خو به زه د ختو څخه لا جوړ کړم، کافر سو، په دی مسئله کښي و بحث ته ضرورت سته، یا به حتما په خپل قول کښي درواغجن وي، په خاطر د دښمني به دا خبره کوي، او که وایي: چه حتما بل دغسي څوك جوړه ولای سم په ښکاره سره کافرسو، او هم یي احتمال د عدم کفر هم سته چه په دغه قول سره نه کافر کیږي، لکه دا قول د عیسی ﷺ ﴿اِنِّي اَخْلُقُ لَكُمْ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ﴾ سورة آل عمران د ۴۹ ایت یوه ټوټه، ترجمه: بیشکه زه جوړوم تاسوته ای بني اسرائیلو دختو څخه په شان او شکل د مرغه، په هر حال دغه خبره په هیڅ شکل ددغه سره نه تشبیه کیږي، څکه چه عیسی ﷺ وروسته دا ورسره وویل: ﴿ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِ اللهِ﴾ نو بیا پوو کوم پدغه شکل کښي نو هغه به کیږي په شکل سره د الوتونکي مرغه په اذن او حکم د اللهﷻ سره، راسی چه ددي آیت شریف تفسیر وکړو چه مسئله ښه راته روښانه سي، یوازي د شکل او صورت څخه په ﴿خلق﴾ سره تعبیر کول، تش ظاهري حیثیت دی، لکه چه په صحیح حدیث کښي معمولي تصویر کښل په خلق سره تعبیر سویدي ﴿اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ﴾ یعني رسول الله ﷺ فرمایي: په ورځ د

قيامت به د غورسامانو او عکاسانو ته ووېل سي، اوس دغه مخلوق چه تاسو جوړ کړيدي ژوندي يې کړي، يا پر اللهﷻ باندي د﴿ اَحۡسَنُ الۡخَالِقِيۡنَ﴾ اطلاق دا راوښودل چه دالفظ يوازي د ظاهري صورت په لحاظ دماسوا څخه د اللهﷻ په نسبت ويل کيداي سي،که څه هم د تخليق په لحاظ د الله ﷻ څخه پرته بل هيچاته خالق نسي ويل کيداي، ښايي چه له همدي کبله يې داسي ندي فرمايلي: ﴿ اِنِّي اَخۡلُقُ لَكُمۡ مِنَ الطِّيۡنِ طَيۡرًا﴾ يعني زه د خټو څخه وتاسو ته مرغه جوړوم، بلکه داسي وفرمايل: چه زه ﴿د خټو څخه د مرغه د شکل په شان جوړوم او بيا په هغه کښي پوو کوم نو بيا هغه خټه د اللهﷻ په حکم سره الوزي، په هر حال دا معجزه يې و دويته وروښودله،

په ﴿محيط﴾ کښي راځي،د دوو نفرو يودبل سره دعوه او منازعه وه، يوه و هغه بل ته ووېل: ته څه شي يې؟ زه تاغوندي شل دخټو څخه جوړوم، يايي د خټو نوم وانه خستي، صرف دومره يې ووېل: چه زه تا غوندي شل هره ورځ جوړوم، کافرسو.

که چا ويوه سړي ته ووېل: خدايتعالیﷻ داسي سور پيدا کړي يې لکه د سره سيب د پوستکي څخه هغه سړي ورته ووېل: هو: ته يې دتورو لوشو څخه پيدا کړي يې،کافرسو،

ځکه دوي پر خدایتعالیﷻ باندي درواغ او افتراء وويله، خو دا احتمال هم سته چه نه کافر کیږي که څه هم په خپله دعوه کښي درواغجنان دي، ﴿فتاوي تتارخانية، ج ۵ ص ۵۲۸﴾ او﴿فتاوي البزازية،ج ۶ ص ۳۳۵،او بحر الرايق، لابن نجيم،ج ۵ ص۱۳۳﴾

په فتاوي قاضي خان کښي راځي: که چا ويوه چاته وويل: ولي داسي راسره کوي، ايا زه د خداي مخلوق نه يم؟ هغه بل ورته وايي: خدایتعلیﷻ خو خلق کړي مګر بیرته يي طرد او وشړلي، د ډيرو مشايخو په قول دا سړي کافر سو، ﴿فتاوي قاضي خان﴾ ج ۴ ص ۴۷۱،

﴿شارح﴾ وايي: چه په ښکاره سره دا سړي نه کافر کیږي، ځکه دا احتمال سته چه دا سړی به یادرواغجن وي یابه صادق وي په خپلو افعالو کښي ليکن فتاوي الظهيريه او محيط وايي: چه د ټولو په نزد کافر دی، او شايد سبب د کفر يي هم داوي چه په غيبو سره يي حکم وکړی، او په مصطلحاتو کښي دامام ابو حنيفه پر ځاي د ټولو علماؤ داسي راغلي دي چه په نزد د ځينو علماؤ کافر دی چه مراد ورڅخه اکثريت دي،

په خلاصه کښي راځي، که چا وخپل زوي ته وويل: ای د کافر ياد مجوسي ياد هندو زويه، ځيني علماء وايي کافر

کیږي، ﴿خلاصة الفتاوی لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۵.﴾او فتاوي د قاضي خان، ج ۴ ص ۴۷۱،
وايي صحيح خبره داده چه نه کافر کیږي، که يي قصد او مراد دځان ارتداد نه وو، ﴿فتاوي الهنديه، المرجع السابق،ج ۱ ص ۲۷۸﴾ همدغه خبره کړيده، امام علی قاري صاحب هم وايي چه نه کافر کیږي، ځکه دده مراد ورته ښکنځل کول وه چه په لعنت او قذف سره يي ورته وويل، دده بعينه دا مقصد نه دي چه دی مجوسي يا کافر دی، خو بيا هم داسي خبري کول ممنوع دي، په خاطر ددي چه داسي احتمال پيښ نه سي چه دی په ځان خبر نه وي او کافر سي،.﴿بَاقِيْ وَاللهُ اَعْلَمُ بِالْحَالِ﴾ د زړو مالك او عالم په حال يي يو الله ﷻ خبر دی،
که چا وخپل حيوان ته وويل: ای د کافر خره ياد کافر آس يا ای د کافر مال، که يي نيت د مخکي په شان وي، کافر کیږي، اوکنه وي بيا نه کافر کیږي، شايد امکان لري چه ددغه شي اول مالك به کافر وو، دامسئله ﴿ فتاوي قاضي خان﴾ هم راوړي ده، په جلد ۴ ص ۴۷۱، کښي، او داسي تعليق يي ورباندي کړيدی، وايي په داسي خبرو سره نه کافر کیږئ، ځکه حيوانات موږان داسي شيان دي چه لاس پرلاس کیږي، او داسي خبري او الفاظ هميشه دجاهلانو پر ژبو باندي راځي چه

ددوي مقصد دانه وي چه خپل ځان کافر وبولي، ﴿فتاوي الهنديه المرجع السابق، ج ۲ ص ۲۷۸﴾ يادونه﴾ په دغه مسئله کښي د موټرانود لفظ زياتوب دژباړونکي دخوا سويدي، په ﴿ظهيريه﴾ کښي راغلي دي، که چا وويل: نه موجود پيژنم اونه غير موجود ،يعني نه کاين اونه غيرکاين، کافر سو، دا مسئله ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿من يکفر ولم يشعر﴾ کښي راوړيده، او ﴿ بحر الرايق د ابن نجم په جلد ۵ ص ۱۳۲ کښي ذکر کړيده،

په ﴿ فتاوي اليتيمة﴾ کښي راځي، که چا وويل: زه پر عقيده دفرعون او ابليس يم، يا زما داسي عقيده ده لکه د فرعون او ابليس، کافرسو، اوکه يي وويل: زه داسي يم لکه فرعون يالکه ابليس نه کافرکيږي، که يي مقصد دنامه مشارکت وي يا مجردمقصد يي شرارت نفسي وي، نه کفر د فرعون او ابليس،

که چا په ډير عذر او اعتذار سره وويل: زماد ناپوهي او جهل په خاطر ډير احکام شرعي مي نه دي زده کړي او کافر ومه اوس مسلمان سولم، ډير په دي عقيده دي چه کافر کيږي اوځيني وايي نه کافر کيږي، خو ﴿شارح علي القاري﴾ وايي هو هغه وخت کافر ندی که په غالب گمان سره په اول قول کښي درواغ جن وي،

که چاوويل: لعنت د خداي دي وي پر ابليس باندي،بل وويل: زه خو پر ابليس باندي لعنت نه وايم، کافرسو، ځکه چه ده معارضه پر قول دالله تعالیﷻ وکړل، اوکنه امتناع دلعنت ويلو پر شيطان باندي ښه به دا وي، چه ګناه يي وبولو نه کفر،
که چا يو بت جوړ کړی، کافر سو، په دي نيت که په دي باندي راضي وو، چه رواج سي، او خلق يي عبادت وکړي، ﴿زبدة الفتاوي﴾ لمحمد بن يوسف القرماني،لوحه ۳۷۹، او کتاب د ﴿ابن قطلوبغا، من يکفر ولم يشعر،لوحه ۱۲ ﴾ خو بيا هم په دغه لوړه مسئله کښي وبحث ته ضرورت سته، هغه دا چه لازمه نده چه دی دي دومره وکفر ته نژدي کړي، اود ايمان څخه دی ليري کړي اوکه يي قصد او نيت دکفر وي، بيا کافر کيږي ځکه چه کفر په قصداونيت سره واقع کيږي، اوکه چا ورته وويل: دغه بوتان مه جوړه وه، که ده ورته وويل: پري موږده زه کافر کيږم، بس په همدغه خبره کولو سره کافرسو، يا شايد دا امکان سته چه دده اراده وي چه کفرته نژدي سي، ﴿وَاللّٰهُ اَعْلَمْ﴾
په ﴿محيط﴾ اوپه﴿ فتاوي الصغری﴾ کښي راځي: که چا وچاته يوه دکفر خبره ورښودل که هغه په دغه سره خبري وکړلي، هغه ملقن يعني ښوونکي کافرسو، که پر طريقه دبازيو اوخنداوي،

﴿فتاوي تتارخانیه، لعالم بن العلاء الانصاري﴾ ج ۵ ص ۵۲۶ ،
زه وایم: په دي کښي څه وایاست، دوه نفره عالمان یو مالکي اوبل شافعي وروسته تر تحصیل حاصلولو څخه د علم فقهي وخپل وطن ته ولاړل، نو هر کله چه ددوي څخه دکومي مسئلي په باره کښي وپوښتل سي، نو ددوي دوه نظره وي،یا د امام شافعي پکښي دوه قوله وي، که هغه پوښتیدونکي وویل: آیا ستاسو په خداي کښي شك دی؟ چه وایاست پدي کښي دوه سببه دي یا پکښي دوه قوله دي، کافر کیږي په دغه خبره سره اوهم پر ملقن باندي د کفر حکم کولاي سو، ځکه دی په کفر سره راضي سو، بناء پر ډیروالي دگمان دده چه کوي یي هغه خبره چه په هغه سره کفر واجبیږي،
که چا ویوي ښځي ته وویله چه ته مرتده سه، یعني د دین څخه داسلام ووزه یایوه مفتي ورته امر د ارتداد ورباندي وکړي، آمر او مفتي دواړه کافران سول، ځکه دوي په کفر سره راضي سول، ځکه رضایت په کفر سره دبل مسلمان کفر دي، دلته سوال پیداکیږي، چه ایا ښځه کافره سول که یا؟ که ښځه په ارتداد راضي سول کافره ده اوکنه وي بیا کافره نده،
شارح ابو علی قاري هم وایي: هغه وخت ښځه کافره ده که پر ارتداد راضي وه، ځیني علماء څومره بددي، چه ددي زماني دآ

مرانو په خدمت کي يي ملاوي تړلي دي، د غوامرانو ته حيلي او چمونه ورښيي، نوکه ددغه آمرانو يوه ښايسته ښځه خوښه سول او هغي ميړه درلودی اودهغي ميړه خپله دغه ښځه نه طلاقول، نودغه ﴿ عُلَماَءَ السُوء﴾ يعني دغه بدعالمان ودغي ښځي ته وايي چه ته د دين څخه واوړه يعني مرتده سه، داتړوله ددي دپاره چه وروسته ددغه آمر سره نکاح وتړي وروسته تر اسلام راوړلو، اويا ورته وايي وآمرته: چه پر داغه کفر دي پاته وي، د مينځي مملوکي په شکل يي د ځانه سره وساته ترڅو تاته يي جماع کول روا او جايز وي دا هغه وخت ورته وايي که هغه ځلور ښځي نوري په خپله نکاح کښي ولري:

همدارنگه په خلاصه کښي راځي، چه معلم او ملقن چه ورته وايي داسي ووايه هم کافران سول، ﴿خلاصة الفتاوي، لوحه ۳۵۶﴾

په ﴿محيط﴾ کښي راځي که چا وچاته وويل: چه کافرسه، هغه امر کونکي مخکي تر مامور کافر کيږي، دغه مسئله فتاوي تتارخانيه، په جلد ۵ ص ۲۲۶، کي راوړيده، اودا خبره کوي چه رضا د بل په کفر سره کفر دی،

او د ﴿ بحر الرايق﴾ په جلد ۵ ص ۱۳۲ کښي دا قول راوړيدی چه رضا دبل په کفر سره کفر نه دی، په داسي حال کښي نو بيا

نه معلم اونه هم آمر کافر کیږي، یعني حکم دمامور او ممتنع په حق کښي یو شاني دی،

که چا ویوه مسلمان ته ارتداد وروښودی، دغه ښوونکی د ارتداد تر هغه بل ترمخه مرتد سو،

وایي داهغه وخت کیداي سي، که دغه سړی په دي پوهیدی که زه ورته ووایم، مرتد کیږي، نو یي بیا وهغه ته ارتداد ورونه ښودی، نوبیا معلم نه کافر کیږي،

فقیه

﴿ابو اللیث﴾ وایي: که چا وچاته ارتداد وروښودی اوورته ویي ویل چه کافرسه، معلم کافرسو، اوکه یي په کفر سره نکړي امر بیا نه کافر کیږي، ﴿فتاوي ابو اللیث سمرقندي،لوحه ٢۶٠،او خزانة الفقه لوحه ٢١٧،

شارح علي قاري وایي: صحیح قول د جمهورو دی، هغه دا چه که چاوچاته دارتداد لار او طریقه وروښودله چه مرتدسي اوپه ټولنه کښي فساد واچوي بیله شکه دغه سړی کافرسو، په سبب د بدلون او انقلاب دنیت دده پرده باندي کفر په سبب د اعتقاد دده واجبیږي، بیاهم دار ومدار پر قصد او عزم دی، که دده قصد او عزم داوي چه تعلیم د ارتداد ددي لپاره وکړي،

چه مرتد سي نو معلم هم كافرسو، ځكه الله تعالیﷻ فساد كونكي خوښ نلري،

مورږ د خپل قول تائيد په قول سره داجامع كوو چه په محيط او مجمع الفتاوي كښي يي نقل كړيدي وايي كه چا داعزم اوقصد درلودی چه څوك په كفر سره امر كړي، ددہ دغه عزم او قصد دی كافر كوي، ﴿التتارخانية﴾ ج ۵ ،ص ۵۲۷ او﴿ بحر الرايق﴾،ج ۵ ص ۱۳۳،

په خلاصه كښي راځي: كه چا وويل: زه ملحد يم، كافر سو، ځكه چه ملحد بدترين د انواعو څخه د كفر دی،

راسی، چه ملحد در وښيم چه ملحد معنی څه او چاته ملحد ويل كيږي؟ الحاد په لغت كښي د ميل ته ويل كيږي، يا ګرځيدل د استقامت څخه، او ملحد هغه څوك دي چه د حق څخه وباطل ته ګرځيدلی وي، يا يي داسي شی د ځان دپاره خوښ كړی وي چه دده څخه نه وي، ياپه اصطلاح كښي ملحد وايي ګرځيدونكي ته د حق څخه وباطل ته،

په ﴿محيط﴾ او حاوي كښي راځي چه ملحد كافر دی، اوكه يي وويل: چه نه پوهيدلم چه دا دكفر كليمه ده ، په ښكاره سره يي بايد قضاء دغه عذرده ونه مني كه څه هم دده او خداي ﷻ تر ميان صادقه مسلماني وي، ﴿الحاوي للحصيري﴾ لوحه ۱۷۵،

په جواهر کښې راځي : که چا وويل: که صبا داسي وسول ښه تر ښه کنه زه کافر کيږم، په همدغه لحظه ځاي پر ځاي کافر سو، «زبدة الفتاوي» لوحه ٣٧٩، او کتاب د «ابن قطلوبغا، من يکفر ولم يشعر» لوحه ١٣،

په «محيط» کښې راځي:که چا وويل: زه کافر يم، ياپه زور د پوليسو يا د جزاء! د وهمه اوبيري يي وويل: کافر يم، «ابو القاسم» وايي: چه ځاي پر ځاي کافرسو،داسي واقعات اکثر وختونه دروژي په مياشت کښې په اسلامي دولتوکښې پيښيږي پوليس يو سړي نيسي چه هغه دورځي روژه خوري نو دغه سړي دځان دبيري او وهم څخه وايي زه کافر يم:نوځکه مي روژه خوړل ،

«نوټ» ابو القاسم دملتفط دکتاب مصنف دی په ډيرو ځايو کښې شيخ علي قاري ﷺ دده ومصادروته مراجعه کړيده،

که چيري ميړه وښځي ته يا ښځي وميړه ته وويل: ته به هميشه زما سره دا کارکوي، هر وخت وهرکله، کافره سوله،

که چا وويله: هروخت و زمان تر کفر نژدي دی، کافر سو، په دغه مسئله کښې خو دا ښکاره نظر دی، چه دا خبره به حمل کړو پردي باندي چه شيطان موږ په بدو او رزيلو اوخطرناکو وسوسو کښې اچولی سي چه په همدي سبب مو کفر ته نژدي

کوي، لیکن الله تعالیٰﷻ مو په خپلو الفاظو او اسرارو ورڅخه ساتي

که چا وویل: اوس نو دومره ستړي سولم، دمسلمانی څخه غواړم چه کافر سم، کافر سو ځکه چه اراده کول د کفر، کفر دی،

په ﴿فتاوي الصغری﴾ کښي راځي: که چا وچاته وویل: که دي خوښه وي مسلمان سه اوکه دي خوښه وي یهودي سه، دغه دواړه ماته یوشي دي، کافر سو، ځکه چه دی په کفر سره دبل مسلمان راضي سو، که څوك د بل چا په کفر سره راضي سي کافر دی، یعني رضا دبل په کفر سره سړی کافر کوي، ﴿فتاوي الصغری، لحسام الدین عمر بن عبدالعزیز﴾ لوحه ۳۳۹، والزواجر لابن الحجرالهیتمي، ج ۱ ص ۳۰، په دي مسئله کښي چه وایي که مسلمان کیږي اوکه یهودي کیږي ماته یوشي دي، په دي مسئله کښي اختلاف سته، داخبره هم ډیره لیري نده چه داسړی کافر وبولو، ځکه چه هغه داسلام پاك او مقدس دین او یهودیت یوشان وبلل، دامساویت اوبرابري ورکول صرف د خبرو د لاري وي یایي دا قصد وي دده چه اسلام او یهودیت کله سره برابر او یو شان کیداي سي بیا نه کافر کیږي، ځکه ده دا خبره دخصومت دلاري څخه کړیده،

په خلاصه کښي او حاوي کښي راځي: که چا ویوه مسلمان ته وویل: چه ووایه ﴿لاَ اِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ﴾ که هغه وویل: نه وایم، کافر

سو، څکه ده د اقرار کولو څخه انکار او ممانعت وکړي حال داچي اقرار شرط د اجراء داحکامو داسلام دی، اوکه يي دنه ويلو څخه مقصد داوي چه ماته اسلام رامعلوم دي، بيا نه کافر کيږي، د نور معلومات لپاره ﴿خلاصة﴾ وګوری،لوحه ۳۵۶،

په يتيمة کښي راځي :که يي دغه ويل چه نه يي وايم دمسخرو يا تائيدپه شکل وي ،کافر کيږي ،او که يي داسي نيت وي چه اوس يي نه وايم : بيا نه کافر کيږي ،﴿زبدة الفتاوي ﴾دمحمد بن يوسف ،لوحه ۳۷۹او ابن قطلوبغا لوحه ۱۳په جواهر او محيط کښي راځي :کچا وويل ددې کليمي څخه خو مو هيڅ ونه ګټل ددغي خبري دکولو سره کافر سو ،﴿زبدةالفتاوي ﴾لوحه ۳۷۹او کتاب د﴿ابن قطلوبغا﴾کفر ولم يشعر﴾لوحه ۱۳ په محيط کښي راځي که يوي ښځي وخپل ميړه ته وويل ،که کافره واي تر دي خو به ښه واي چه ستا سره يم کافره سول څکه چه مقام او اوسيدنه دخپل ميړه سره فرض ده ،ليکن دي وکفر ته پر فرضو باندي ترجيح ورکړل ،﴿فتاوي التتارخانية﴾ج ۵ص۱۳۳ او ﴿بحرالرايق﴾ج ۵ص ۵۱۶او﴿بحرالرايق ﴾۵ص ۱۳۳بيا هم دغه مسئله وبحث ته ضرورت لري ،که چيري مقام دميړه سره فرض واي ،نو خلع به مباح نه واي ،نو په همدي سبب سره کولاي سو چه دا خبره پر ژوند باندي حمل کړو په

حالت کښي دکفر سره ددي چه بد والي يي تر ژوند او ملګرتياااسانه دي ،

نوټ: خلع وايي په لغت کښي وکښلوته او په اصطلاح کښي وايي وازالي او دميانځه ورلو ته ديوه عقد او پيمان چي هغه عقد دنکاح دي که ښځه وخپل ميړه ته يوه اندازه پيسي ورکړي دنکاح دفسخه کولودپاره دغه ته طلاق خلع وايي ،داچي دميړه او مايني تر ميان صلح نه راځي نو ښه به داوي چه دغه مشکل دخلع په واسطه سره حل کړه سي،

که چايو څوك د صلحي دپاره راوباله چه يو دبله سره صلح وکړي، که مقابل سړي وويل: وبت ته سجده کوم، خو ددغه سړي سره صلح او جوړه نکوم،کافر سو، ځيني وايي نه کافر کيږي ځکه دده دخبرو مقصد او غايه داده، يعني دخول يي وصلحي ته سخت اوبد دی ورته ترکفر د محيط مصنف ﴿برهان الدين﴾ وايي: زماپه نظر کافر کيږي، دده نظر شايد په دي سبب وي، چه دی وصلحي ته ترجيح ورکوي، ترعداوت اودښمني اوبد بيني او صلح ښه نه بولي لکه څنګه چه الله ﷻ فرمايي په قرآن عظيم الشان کښي: ﴿وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا اَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ سورة النساء د ١٢٨ آيت ټوټه، يعني که کومه ښځه بيريدل دخپل ميړه څخه چه هغه به سرکښي وکړي، ددي

په حقوقو کښي اودابه پرېږدي، يابه ددي سره صحبت کول پرېږدي، ورځخه خوابدی به سي بيا به خبري او مجلس نه ورسره کوي، پس نسته هيڅ گناه پر دوي دواړو باندي چه صلح سره وکړي، دوي په خپلو ميانځو کښي يو شان صلح او جوړ جاړي او صلح کول ډير ښه دي، ښه اوس دا معلومه سول که چا دښمني او عداوت پرصلح باندي ښه وبلل کافرکيږي، راسي اوس د لوړ آيت ښه تفسير او ترجمه په ښه واضيحه توگه سره وکړو، يعني که کومه ښځه د خپل ميړه زړه د ځانه ځخه خفه ووينې، نو ورته ښايي چه د هغه د خوښی دپاره او ځانته د متوجه کولو په خاطر دخپلي نفقي يا مهر ځخه يوڅه لږه حصه ورپرېږدي، او دخپله ځانه ځخه يي خوښ او خوشحاله کړي، نوپه دغه مصالحه کښي دهيچا پر ذمه باندي هيڅ گناه نسته، مصالحت او موافقه ډير ښه خبره ده، هو، بيله سببه د ښځي خپه کول او تکليف ورکول او زهيرول يي اوددي بيله رضاء ځخه ددی په مال کښي تصرف کول گناه ده په کفر کښي شردی اوهم مو دصلحي ځخه محروموي،

اوکه فرض کړو چه دغه خبره چه وبت ته سجده کوم او صلح نکوم دا اقرار کول پر کفر دي، اودا خبره کول چه صلح نکوم اثبات دی پر کفر باندي.

که چا وويل: که فلانکي پير يا شيخ پرماباندي د کفر امر هم وکړي لابه يي وکړم، دده مقصد به داوي که مي دوي پر هر څه باندي امر کړي هغه کوم که څه هم هغه کفر وي، نوهر کله چه يي په خپلو خبرو کښي د کفر لفظ ياد کړي، نو کافرسو، ځکه ده نيت دکفر وکړي په مستقبل کښي چه په همدغه نيت کولو سره في الحال کافرسو، اوپر دغه خبره باندي دا حديث شريف د رسول اللهﷺ د دليل په ډول وړاندي کووچه فرمايي: ﴿لَاَ طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ﴾ الحديث، روايت کوونکي ﴿امام احمد﴾ په خپل مسند کښي په ج ۱ ص ۱۳۱، اوجلد ۵ ص ۶۶، او سنن ترميذي ج ۳ ص ۱۲۵، د ذکر سوي حديث ترجمه داسي ده، طاعت او فرمانبرداري دمخلوق نسته په نافرماني کښي د خالق، نو داښه دليل سو راته چه د مخلوق وامر ته دخالق پر امر باندي ترجيح ورکول، کفردی،

که چا وويل: زه د اسلام څخه بيزاره يم، ځيني وايي چه کافر کيږي، ﴿فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۴۷۵﴾ او ﴿فتاوي د قاضي خان په ج ۴ ص ۴۶۷﴾ کښي په دي مسئله کښي ډير صورتونه سته نو هيله ده چه دښه تفصيلاتو دپاره ﴿فتاوي قاضيخان﴾ دي وکتل سي، په

ډيرو نسخو کښي راغلي دي، چه دا خبره صحيح نده چه دی په کافر کيږي،خلاف پدي کښي دادی که ده وويل: زه د اسلام څخه بيزاره يم،او بيا يي هم داسي افعال اواعمال کول چه هغه ضد او منافي داسلام وي کافرکيږي.
اوکه محضی دخولي يوه خبره يي وکړل، وروسته ټول افعال يي دمسلمانانو وه نه کافر کيږي،
په ﴿حاوي﴾ کښي راځي که مؤذن اذان کاوه اودغه سړي وويل چه درواغ دي وويل،کافر سو. ﴿الحاوي للحصيری، لوحه ۱۷۵﴾
په ﴿جواهر﴾ کښي راځي:که چا اذان واوريدی يا د قرآن تلاوت يي واوريدلي نوپه مسخرو يي وويل: دا څومره بد اواز يي دی يا يي ورپوري وخندل،کافرسو. ﴿عالم بن علاء، فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۵۰۰، او بحر الرايق دابن نجم، ج ۵ ص ۱۳۲﴾ دکفر سبب يي مسخري او استهزاء په دين پوري ده،
که چا اذان واوريدی يا يي د قرآن تلاوت واوريدی او ويي ويل: داد بيگانه وو اوازونه دي، په ټولو کښي کافر سو، اوکه يي داسي وويل: دانن دبل ناشناخته اونابلده سړي اذان دی اويا د ناولده سړي اواز دی، نه يي پيژنم، بيا نه کافر کيږي، د ﴿ابن قطلوبغا، کتاب من يکفر ولم يشعر، لوحه ۱۳﴾ او ﴿فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۵۰۰﴾

په خلاصه کښي راځي: که چا وويل: نصراني تر يهودي ښه دی او يايي بالعکس وويل: کافرسو، بايد داسي يي ويلي واي، چه دواړه يوتر بل بد دي، ﴿خلاصه فتاوي، لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۶﴾ اوکه ددغه سړي دامراد وي چه نصرانيان نسبت تر يهودو ومسلمانانو ته نژدي اوښه دي، بيا نه کافر کيږي، لکه څنگه چه الله ﷻ په قرآن کښي فرمايي: ﴿ وَ لَتَجِدَ نَّ اَقْرَبَهُمْ لِلّذِيْنَ آمَنُوْا الّذِيْنَ قَالُوْا اِنّا نَصَارٰى﴾ سورة المائدة ايت ۸۲،

او خامخا به پيدا کړي ته نژدي تر ټولو د خلقو څخه د جهته څخه د دوستي دهغو کسانو سره چه مؤمنان دي، هغه کسان چه وايي: بيشکه موږ نصارى يو، دا دوستي په سبب ددي ده، چه بيشکه ځيني ددوي څخه رښتيني عالمان دي، اوهم زاهدان او پوهان دي، او بيشکه چه دوي نکوي تکبر او لويي د منلو څخه د حق،

که چا وويل: فلانکی ترما کافر دی، يعني مراد يي داوي چه هغه تر ماښه کافر دی، کافر سو، ځکه ده وکفر ته فضيلت ورکړي اوښه يي وباله، لکه څنگه چه الله ﷻ په قرآن کښي فرمايي: ﴿ قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَا اَكْفَرَهٗ﴾ سورة عبس آيت ۱۷، يعني هلاکت دي وي پر کافر انسان چه څه شي دی کافر کړي دی، يا څه شي يي باعث دکفر سويدي، يعني د قرآن کريم غوندي

دلوي نعمت هيڅ قدر او عزت يي ونه پيژندی، او دالله ﷻ حق يي پر ځاي نکړی، اوله دي څخه يي هيڅ انديښنه ونکړل چه دی مور دغه شي څخه پيدا کړيدی،

که چا وويل: بيخي نفس مي تنگ دی غواړم چه کافر سم، بس په همدغه نيت کولو سره في الحال کافرسو، ځيني بيا وايي: داخبره چه غواړم يامي قصد دی، دا مربوطه ده دده په جديت او تاکيديت سره لکه څنگه چه مخکي مو دامسئله ذکر کړل، ﴿وَاللهُ أَعْلَمُ﴾

په فتاوي الصغری کښي راځي: که چا د مجوسيانو په شاني خولی پر سر کړي، بيا يي ددوي په شاني جامي او کالي اغوستي وي، ياپي يوه ژړه توته ټوکر پر غاړه پيچلي وي، يا يي يوتار تر خپلي ملا تړلي وي چه داد دوي ديني شعائر دي، کافر سو. يا ځان جوړول په دغه شکل سره کافر کيږي، که دغه تناب يا تار ددوي سره مشابه اويو شان وو، اوکه ددوي په شان نه وو اونه يي څه مشابهت ددوي د زنار سره درلودي، بيا نه کافر کيږي،

﴿نوټ﴾ راسي چه زنار در وښيم چه هغه څنگه شی دی بايد وي پيژنو او ځان ورڅخه وساتو ﴿زنّار﴾ د غټي گوتي په اندازه يو وريښمن تناب دی، چه مجوسيان او اهل الذمة خلقو پر خپل

ملا او اوږه باندي اچاوه، د نورو معلوماتو لپاره ﴿تصریحات جرجاني﴾ وګوری، ض ۱۱۵، که چا ځان د یهودو او نصارو په شکل سره جوړ کړی وو، یعني ددوي په رقم یې کالي اغوستل یا یي ددوي په شکل ناسته ولاړه او حرکات کول، که څه پر طریقه د خنداو او مسخرو وي، کافرکیږي، ﴿خلاصه الفتاوي الصغری، د حسام الدین عمر بن عبدالعزیز، لوحه ۳۴۲، فتاوي قاضي خان، ج ۴ ص ۴۷۰، او او فتاوي التتارخانیه، ج ۵ ص ۵۲۱﴾

په ﴿خلاصه﴾ کښي راځي، که چا د مجوسانو خولي پر سر کړل، ځیني وایي کافر کیږي، او ځیني علماء دمتاخرینو وایي، که د ضرورت په خاطر یي پر سر کړي چه ډیر یخ وي یا غوا شیدي نه ورکوي یا د بل خاص ضرورت په خاطر یي پر سر کړي، نه کافر کیږي، اوکه بیله ضرورته او عذر څخه یي پر سر کوي، کافر کیږي،

شارح وایي: د روافضو په شاني تاج پر سر کول مکروه دی په کراهت تحریمي سره، که څه هم کفر ندی، او رسولﷺ فرمایي: ﴿مَنْ تشابَهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ﴾ الحدیث سنن ابو داود، ج ۴ ص ۴۴،

که څوک د کفارو په ملك یا ښار کښي ژوند کوي، اوپه دي سره ماموره وي چه باید ددوي لباس واغوندي مګر په زړه کښي

دده ددوي د لباس اومشابهت څخه بد راځي، بيا نو پروا نلري، ځکه ورته عذر او ضرورت ويل کيږي، «حاشية الدسوقي على الشارح الكبير للدردير، ج ۴ ص ۳۰۲» او« فتاوي تتارخانيه، لعالم بن العلاء ج ۵ ص ۵۲۰» اوځيني علماء پر هر حال وزمان کښي ددي څخه انکار نکوي، چه هيڅ مسلمان ته نه ښايي چي د مجوسيانو په شاني خولي پرسر کي ياد کفارو په شاني لباس واغوندي، حتیٰ علماء کرام وايي: د ازبکيانو خولي اغوستل هم بدعت دی، ځکه موږ ددي څخه منعه کړه سوي يو چه د کفارو مشابهت وکړو، اوهمدارنگه دهغه چا د مشابهت څخه منعه کړه سوي يوچه هغه بدعت کونکی وي، بايد دکفارو او مبتد عينو دهر ډول شعايرو او اخلاقود مشابهت څخه ځانونه وساتو، خوبيا هم داسي بدعتونه سته چه بيخي په جدي توگه ورڅخه نه يو منع کړه سوي،خو بدعت بدعت دي که څه هم هغه مباح وي يا ذا فعالو څخه داهل سنتو وي ياد افعالو څخه دکفارو وي، خو مقصد زموږ پردار مدار او کړنه باندي دی،

موږ په مسئله کښي د ازبکو خولی هم ياده کړل، نو ښه به داوي چه اول ازبك درته وښه يم، اوزبك يوه ډيره سخته او مشدده ډله ده چه ډيره اندازه يي په افغانستان اوشاوخوا سيمو کښي ميشته دي، جناب علامة علی قاري په ډيرو

مؤلفاتو کښې ودویته اشاره کړیده، چه دوي ډیر سخت دریځه او بدعت ته مایل خلق دي، اوډیر متعصب او سخت وبي رحمه خلق دي، اوپه دیني چارو کښې ډیره غلو کوي، خصوصا په دښمني کښې د روافضو او شیعه گانو سره، حتی چه یو تربله کافر سره وایي، حتی په دوي کښې یوه داسي ډله هم سته چه د زیات غلواو تجاوزکولو په اسلام کښې د اصلي لاري او نهجت اسلامي څخه وتلي دي، دوي وایي: څوك چه دا دومره غټ گناهونه کوي بیا څنگه ورته مسلمان ویلاي سو، خو زه نه وایم چه دوي کفار دي لکه ځیني حنیفي علماء چه وایي: دوي هر څه چه کوي یي خو په باطن یي یو الله ﷻ ښه خبر دی نو ښه به داوي چه نور ددوي په باره کښې سکوت اختیار کړو او هیڅ ونه وایو دنور ښه معلوماتو لپاره ﴿ شم العوارض في ذم الروافض﴾ وگوری، لوحه ۹-۱۲، اوس به راسو چه بدعت درته وښیم، لیري به نه یم چه داسي ډیر پښتانه وروڼه سته چه د بدعت څخه ناخبره پاته دي او هیڅ یي نه پیژني چه بدعت بیا څه شي دی، مؤلف زما ددي کتاب بدعت یو عادي شي نه بولي وایي چه بدعت یو داسي کار دی چه د علماؤ په کښې خلاف دی، او ﴿شاطبیي﴾ پدي کښې نه داخلوي او د مخالفینو جواب داسي کوي، د دښمن دعاداتو څخه هرنوي کار بدعت دی، چه تر دي عنوان لاندي ټول هغه کارونه راځي چه په زمانه

کښي د صحابه کرامو نه وه، چه په دي کښي خوړل اغوستل ټول شامل دي، اودا يو ډير بد عمل دی چه دزمان او موسم او ځاي سره يي ځانته جلاجلا نومونه غوره کړيدي، يا خلقو ورباندي ايښي دي،يا اوس پيدا کيږي، هرڅوك چه دهغو عربو څخه مخالف سي چه د صحابه کرامو زمانه يي ليدلي ده نو ورته مبتدعين او غير تابعين ويلاي سو، بلي هم ورته مبتدعين ويلاي سو، اودا ډيره بده ده ،بايد مسلمانان ځانونه تل او هميشه په حدود وشرعيه وو کښي وساتي او هيڅکله د حدودو څخه دشرعي دباندي قدم کښي نږدي، او هميشه پر مقتضیٰ دکتاب دالله ﷻ او سنتو درسول الله ﷺ ژوند وکړي، بايد د ټولو مسلمانانو يو لباس اويو يي حال وي، په سترپا او سختي کښي دحالاتو اود زماني يخ وتاوده بادونه بايد ددوي و شرعي ژوند او احوال ته بدلون ورنکړي، ددي دنيا دغه د څو ورځو عارضي سختي ورباندي د آخرت پراخه او وسيع جنتونه ونعمتونه تنګ نکړي،دنور ښه معلوماتو لپاره ﴿الاعتصام﴾ وګوری، ج ۲ ص ۵۶۱ تر ۵۶۸ پوري،

په محيط کښي راځي: چه صحيح خبره داده، چه د مجوسيانو خولی پرسرکول کفر دی، ځکه چه ضرورت ديخ هيڅ شي ندی اونه هم ضرورت بلل کيږي، ځکه کولاي سي چه څيري کړي او شکل ته يي تغير ورکړي، اود خپل ځان څخه ديخ دفعه دي په

وکړي، او هيڅ ضرورت نسته چه پرخپل اصلي شکل باندي واغوندي، «ابن قطلوبغا» په کتاب «کفرولم يشعر» لوحه ۱۳-۱۴،او زبدة الفتاوي دمحمد بن يوسف، لوحه ۳۷۹،

زه وايم ضرورت هغه وخت دي چه مسلمان ددوي پلاس کښي بندي وي ياد مجوسيانو په ملك کښي مستامن وي، يايي دغه خولي ډيوه کافر څخه په امانت اخيستي وي، نسي کولاي چه شکل ته يي تغير ورکړي، نودی مجبوراً په هغه خپل شکل باندي بايد واغوندي اودځانه څخه د يخ دفاع دي په وکړي،

که چا زنار په غاړه کړي، يايي پر خپل دبدن پر ميان باندي واچاوه، يايي عسلي پراوړو واچاوه، چه دا ديهودو علامه ده، نو کافر کيږي، که يي دغه کار بد او مکروه نه مانه،

«يادونه» عسلي يو ميلر غوندي ټوکر دي چي يهوديان يي په ديني مراسيمو کښي پر اوږو باندي اچوي،

په خلاصه کښي راځي: که چا زنار په دي خاطر په غاړه کاوه چه اسير او بندي نکړه سم، يايي په دي خاطر واچاوه چه د اسارت څخه په خلاص سي بيا نه کافرکيږي، اوکه يو ددغو څخه نه وو بيا کافر دی،

که چا د يهودو يا نصارىٰ وو په شاني زنار واچاوه که څه هم ددوي وکليسا ته ورنسي،کافرسو. دا مسئله «درالدير» داسي ذکر کړيده، که چا د نصارىٰ يا يهودو زنار واغوستی تر هغو

پوري کافرنه دی ترڅو ددوي وکليسا ته داخل شي، ﴿الشرح الکبير للدر الدير مع حاشية الدسوقي، ج ۴ ض ۲۰۱﴾
که چا پر خپل ځان باندي يوه رسي واچول او ويي ويل دا زنار دی، کافر سو، ﴿خلاصه الفتاوي، لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۶﴾
په ﴿ظهيريه﴾ کښي راځي: وايي پر دغه سړي باندي ماينه حراميږي، ځکه ده تصريح په کفر سره وکړل يعني دځان دپاره يي کفر خوښ کړی، ﴿فتاوي البزازيه، ج ۶ ص ۳۳۲﴾
که چا زنار واغوستی او دار الحرب ته د تجارت دپاره ننوتی کافرسو، ځکه ده د کفر لباس بيله ضرورت او احتياج څخه واغوستی، حال داچه هيڅ فايده ورباندي مرتبه نده او خلاف دهغه مخکي مسئلي دي، چه هغه زنار ددي دپاره اغوستي ووچه ځان د اسارت او بنديتوب څخه وساتي، او ډير علماء د تورو کالو د اغوستلو په باره کښي هم په دغه عقيده دي اوکه يي عادتًا تور کالي اغوستل بيا پروا نلري، دا خبره ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿اکفر ولم يشعر﴾ کښي کړيده، په لوحه ۱۴، او ډير علماء دا قول ضعيفه بولي چه په مناسباتو کښي د تورو کالو اغوستل کفردی، او عالم بن علاء دتتارخاني مصنف وايي بايد دتور لباس اغوستل کفر ونه بولو او زموږ د زماني علماؤ هم داخبره ښه بللي ده،

په «ملقط» کښې راځي: که چا وځانته زنار واچاوه او یهودي عسلي یې پر اوږو واچاوه، یایې د مجوسیانو خولي پر سرکړل، داکاریې د مسخرو اوخندا لپاره کوی یاپه خپل دغه کار کښې جدی وي، کافرکیږي، اوکه یې داکار په دی خاطر کاوه چه د دښمن ومیانځ ته ځان داخل کړي، او هلته د مسلمانانو په ګټه کار وکړي، او معلومات د دښمنانو را جمع کړي، په داسي حال کښي بیا نه کافر کیږي، ځکه و دیته «خدیعة الحرب» ویل کیږي، لکه څنګه چه رسول الله ﷺ په یوه حدیث کښي فرمایي: «اَلْحَرْبُ خِدَاعٌ» فتاوي تتارخانیه، ج ۵ ص ۵۲۰، او فتاوي البزازیه، ج ۶ ص ۳۳۲،

په «الظهیریة» کښي راځي: که چا د مجوسیانو خولي پرسر کړل، اوویي ویل: وګوري څوك مي پیژندلای سي چه زه مجوسی نه یم، نو که یي زړه برابر او مستقیم هم وي، کافر سو، ځکه ده په ښکاره سره حکم د شریعت باطل کړي،

که چا په غضب سره وسړي ته وویله: چه کافره، بیا یي وویل: ځان نه یادومه، هیڅ قضاء باید دده تصدیق ونکړی اونه یي دیانت ومنی کتاب د «ابن قطلوبغا، کفرولم یشعر» لوحه ۱۴، فتاوي البزازیه، ج ۶ ص ۲۳۲،

په خلاصه کښي راځي:که چاوویل دکافر ژوند تر خیانت ښه دی، ابو القاسم الصفار فتوي ورکړیده چه دغه سړي په دی خبره سره کافر سو، ځکه ده وګناه ته پر کفر باندي ترجیح ورکړل، چه دا تر ټولو کبایرو لویه کبیره ګناه ده، لکه چه الله ﷻ په قرآن عظیم الشان کښي فرمايي: ﴿ اِنّ اللّٰه لاَ یَغْفِرُ آنْ یُشْرِكَ بِهِ وَیَغْفِرُمادُوْنَ ذَالِكَ لِمَنْ یَشَاءُ﴾
سورة النساء آیت ۴۸، یعني الله ﷻ هغه څوك نه بخښی چه دده سره شریك ونیسی او بخښي نوره هره ګناه چه د شرك څخه کښته وي لویه ګناه وي او که کوچني وي، که یي وچاته د بخښني اراده وي، ددي څخه مطلب داسو چه مشرك ته له سره مغفرت او بخښنه نسته، بلکي دوږخ یي دایمي سزاء ده، هو: دَ شرك څخه کښته کوچني او لوي ګناهونه دمغفرت وړ او لایق دي، الله ﷻ چه دهرچا د بخښني اراده وکړي، او تفسیر قرطبي وايي: دغه قول د الله ﷻ چه فرمايي: ﴿ اِنّ اللّٰه لاَ یَغْفِرُ اَنْ یُشْرِكَ﴾ خدایتعالی ﷻ هغه څوك نه بخښي چه دده سره شریك نیسي، پر دغه حکم د ټولو علماؤ او امامانو اتفاق دي او هیڅ اختلاف پکښي نسته، ﴿الجامع لاحکام القرآن، ج ۵ ص ۲۴۵﴾
که یوه معلم وخپلو شاګردانو ته وویل: یهود تر مسلمانانو ښه دی د خپلو کوچنیانو دمعلمانو حقوق سم ادا کوي، کافرسو، که څه هم دده د خبري مقصد په ښه والي کښي د حقوقو ادا ینه

وي نه ښه والي په ټولو شرعي شيانو كښې، طاهر بن احمد البخاري په خپل كتاب خلاصه كښې دغه مسئله په لوحه ۳۵۶، فتاوي البزازيه، ج ۶ ص ۳۳۳، فتاوي التتارخانيه ج ص ۵۲۰،

په ﴿ ظهيريه ﴾ كښې راځي: كه چا وعظ او نصيحت كاوه او خلقو ته يې ويل چه ګناهونه مكوي، او پر ګناه كارانو باندې يې ملامتيا ويله، اود فاسقانوا وبدكارانو سره به يې تل مخالفت كاوه خو چابه يې په خوله نكول باالاخره په غصه اوپه غضب سو ويل ولاړسي دمجوسيانو خولياني پرسركي او په خپله دغه غوښتنه او خيره باندي راضي وو، اوهم يې دغه اراده وه، كافر سو، كه يې دغه اراده سره د زړه دكومي او استقامت سره وه، ځكه ده وعده په اخبار د انكارو څخه وكړل چه ضد د معتبره اقرارده چه هغه شرط د ايمان دی، ځيني وايي چه نه كافر كيږي، كه يې زړه مستقيم وو نودی پر سابقه اقرار باندي دی، دده دغه نيت چه د مجوسيانوخولي واغوندي دا ګناه ده نه كفر، ځكه دار ومدار په زړه پوري اړه او ارتباط لري،

كه څوك د نصاري وو، په كوڅه ياپه كلي كښې تيريدي او هلته خلق ناست وه شرابونه يې چيښل او سازونه يې كوله، او رقصيدل، نو يې وويل: داغه د ژوند ځاي دي بايد انسان

ددوي په ميانكښي رسي ورواچوي او ددوي په ميان ورګډ سي او د ژوند خوند او مزه واخلي دژوند په دی دنيا كښي كافر سو، «اخلاصة الفتاوي، لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ٣٥۶» او« زبدة الفتاوي لمحمد يوسف القرماني لوحه ٣٧٩، فتاوي البزازيه ٣٣٣» دغه فتاوی وو په اتفاق سره ددغه سړي پر كفر باندي فتوی ورکړيده، دوي دده د كفر سبب د حرامو شيانو حلال بلل ويلي دي، داخومره لويه بی عقلي او حماقت دي چه ددی دنيا خسيس او بيكاره ژوند ته ژوند او خوشحالي وايي په داسي حال كښي چه خدايتعالیﷻ دداسي اعمالو د كونكو سره د سخت عذاب وعده کړيده، چه دويته به ددی دنيا د ژوند په عوض كښي په آخرت كښي سخت عذاب ورکوی، لكه چه رسول الله ﷺ په يوه حديث كښي فرمايي: «لاَ عَيْشَ اِلاَّ عَيْشُ الآخِرَةِ» الحديث صحيح البخاري مع الفتح، ج ٧ ص ١١٨، او صحيح مسلم، ج ٣ ص ١۴١، او ترجمه د لوړ حديث شريف داسي ده، رسول الله ﷺ فرمايي: ژوند ژوند نه دي مګر حقيقي ژوند خو د آخيرت ژوندون دي چه هغه ابدي او هميشه دي،

په خلاصه كښې راځي: كه چا د نوروز په ورځ چه د مجوسيانو دكال اوله ورځ ده يوه دانه هگي هم ويوه مجوسي ته د تحفي په شكل وركړه په مناسبت د نوي كال، كافرسو، ځكه ده دهغه مرسته وكړل پر كفر باندي او تجاوز يي وكړي د اسلامي حدودو څخه پر بغاوت او پر مشابهت كولو دكفارو سره اوكه د نوروز په ورځ ومسلمان ته څه تحفه او هديه وركړي نه كافركيږي، خو بيا هم مشابهت پكښې موجود دي خو ښه به داوي په دغه ورځ په نيت د نوروز بايد وچاته شي ورنكړه سي، په اتفاق د ټولو علماؤ،

په «مجمع النوازل» كښې راځي: كه د نوروز په ورځ مجوسيان سره راټول سوي وه اويوه ميله يي جوړه كړي وه، كوم مسلمان وويل: داځنگه ښه عادت يي جوړ كړيدي، كافرسو. «فتاوي البزازيه» ج ۶ ص ۳۳۳،

ځكه كافر سو چه ده د كفارو كړنه ښه وبلل، كه يي نيت په كي داوه چه دمسلمانانو ټولني او سيرت بد دي اوښه ندي،

په «فتاوي الصغرى» كښې راځي: كه چا د نوروز د ورځي په مناسبت يوشى رانيوي او عادتاً دغه شى يي په نورو ورځو كښې نه رانيوي، كافر سو، ځكه ده د كفارو ورځ لويه او د

عزت او تعظیم ورته بلل، او که یي دغه شی رانیوي او خبر نه وو
چه نن د نوروز ورځ ده، بیا نه کافر کیږي،
همدارنگه شیان یي رانیول د بلي میلمستیا یا بل مناسبت
دپاره که څه هم خبر وي چه نن د نوروز ورځ ده نه کافر کیږي،
که چا و یوچاته د نوروز د ورځي په مناسبت یوه هدیه ورکړه
دپاره د تعظیم د نوروز د ورځي، کافر سو. ﴿فتاوي الصغری﴾
لحسام الدین عمر بن عبدالعزیز، لوح ۳۴۲،
که یوه معلم د یوه شاگرد څخه د نوروز په باره کښي پوښتنه
وکړل او مسؤل هیڅ ورته ونه ویل، معلم دي پر کفر باندي
وبیریږی، که هغه مسئول څه وویل: نوهم دی پر خپل ایمان
باندي وبیریږی، پرده باندي هم د کفر بیره سته،
په یتیمه کښي راځي: که چا یو شي د نوروز په ورځ رانیوي چه
عادتًا دغه شی مسلمانان په دغه ورځ نه رانیسي کافر سو،
حکایت دي د ابي حفص الکبیر څخه که یو سړی پنځوس کاله
عبادت کړی وی او زهد و تقوی یي کړی وی بیا د نوروز په
ورځ راسي اودی وځینو مشرکینو ته یوه هگي په خاطر د
تعظیم ددي ورځي ورکړی، نوکافر سو، اوکفر یي وکړي په الله
ﷻ باندي اود پنځوسو کالو عبادت یي حبطه او برباد سو،
د ابي حفص پوره نوم احمد بن حفص مشهور او معروف،
﴿بابي حفص کبیر دی، چه ډیر مشهوره عالم وو، چه علم یي د

محمد بن حسن الشيباني څخه حاصل کړيدي، تر حساب تير ملګري او انډيوالان لري، د ډيرو فتاواوو درلودنکي دي په حنيفي کتابو کښي کله چه دی بخاری ته ولاړي دده او محمد بن اسماعيل بخاري تر ميان په ځينو شرعي مسايلو کښي تضاد پيدا سو، على قاري او لکنوي نقل کوي، د شمس الائمه ابي بکر محمد بن احمد السرخسي څخه هغه د محمد بن اسماعيل البخاري په زمانه کښي د ابي حفص کبير وو، امام بخاري په خلقو ته فتوی ورکول، تر څو ابي حفص دی د فتوی ورکولو څخه منع کړي، او ورته ويي ويل ته ددی لياقت نلری چه خلقوته فتوی ورکوی، حتی تر دی اندازی چه پوښتنه يي ورڅخه وکړل، که يو هلك او يوه نجلي دواړه د يوي (ميږي) ګډي يا يوي غوا څخه شيدي وروي ددوي نکاح څنګه کيږي، محمد بن اسماعيل بخاري ددوي په حرمت سره فتوی ورکړل، په همدغه سبب سره خلق پر راټول سول او دی يي د بخاری څخه وايستي، خوزه دا قصه د حقيقت څخه ليری بولم، ابي حفص په کال ۲۶۴ ، هجري قمري کښي وفات سويدی، خوزه د محمد بن اسماعيل بخاري ايستنه د بخاری څخه دانه بولم که داهم وی خو ويلاي سم چه انسان د خطا او اشتباه څخه خلاص نه دی،

که څوك دکفارو ومیلی ته دنوروز په ورځ ولاړی ددی لپاره چه ددوي سره په مراسیمو کښې ګډون وکړی ،کافر سو ،ځکه دغه ګډون کول دده اعلان دکفر دي ،یا داچي ددوي سره یي پر کفر کولو باندي کومك او اعانت وکړي ، یا به دا مسئله پر میله باندي دمجوسو قیاس کړو ، معنی داچي ددوي پر افعالو او کړونو باندي ورسره موافق دی ،ځکه ددوي پر افعالو او کړونو ورسره موافقت کول کفر دی.که یو ددغو کفارویا مجوسانو څخه مسلمان سوی وی ،خو بیا دغه ورځ راسي نو بیا ددوي سره ووزي او دپخوا په شاني ددوي په مراسیمو کښې ګډون وکړی کافر کیږي،

نیروز یا نوروز د معرب کال اوله ورځ ده، چه دا د زردشتیانو د زماني څخه رواج لري او دغي ورځي ته دمجوسیانو اختر هم وایي، د نور ښه معلومات دپاره «قاموس المحیط» د فیروزابا دي، وګوري، ص ۶۷۷،

په جواهر کښې راځي: که چاوچاته وویل: حرام مه خوره که هغه ورته وویل: یو بل راکړه بیا به یي نه خورم، یایي وویل: ته داسي څوك راوښیه یایي راښکاره کړه چه هغه دی حلال خوره وي، زه به ایمان ورباندي راوړم، یابه سجده ورته وکړم، په همدغه خبرو سره کافرسو. ځکه مؤمن او مسلمان هغه څوك دی چه پر خدای ﷻ اود هغه پر ملایکو او رسولانو باندي باید

ایمان ولري، غیرله خدایه وبل چاته سجده کول حرام دی، او وچاته عزت ورکول په هرخومره اندازه چه وی کفر نه لازموي، سره ددی چه ایمان په معنیٰ داعتقاد او سجدی دی، که څه په معنیٰ د انقیاد وي،

که چا وویل:زه غوارم چه مال او دولت پیدا کړم، هررنگه چه وي حلال وي اوکه حرام وي پر ما باندي فرق نسته، دداسي خبرو کونکی کافر کیږی، یاو کفر ته تر ایمان نژدی کیږی، ځکه چه ده حلال او حرام سره برابر کړل، یایي حلال په حرامو سره بدل کړل، په هر حال په خبرو کښي فرق نسته، اونه هم فوراً د کفر حکمورباندي کوو، خو ورباندي بیرېږو چه په دغه لاره کښي به ژر وکفر ته ورسیږي، مخکي تر ایمان.

په فتاوي الصغری کښي راځي: که چاوچاته وویل: ته په حلالو پسي نه گرځي؟ که هغه وویل: چه حرام وي په حلالو پسي نه گرځم، حتی حلالو ته گورم لانه، کافرسو، ځکه ده د شرع شریف برعکس کاروکړي اوحرام یي حلال وبلل،

په «ظهیریه» کښي راځي: که چاوچاته وویل: ولي حلال نه خوری؟ که هغه وویل: زما حرام خوښ دي، کافرسو. «فتاوي تتارخانیه، لعالم بن علاء الانصاري، ج ۵ ص ۵۰۴،

تتارخانيه ځکه داشخص کافر بولی، چه ده د شرع خلاف کاروکړي اوهغه شی یي خوښ وباله چه خدایﷻ او رسولﷺ بد بللي دي،

که چا وویل: ماته حرام جایز او روا دي، کافرسو. ځکه دی اباحي سو، یعني حرام یي مباح وبلل، جناب شیخ علي قاري وایي: اباحي ملحد دي، اوهغه کسان چه حرام مباح بولي هغه اباحیان او ملحدان دي، اباحیان قرامطه دي چه د جاهلو او نادانو صوفیانو ثمره او پیدایښت ده، دغه جاهل اوبي علمه صوفیان وایي: موږ ته هرشي مباح او جایز دي، دوي ځان د خدايﷻ محبان بولي، لیکن یوه زره د محبت هم نلري، دوي په هر څه کښي د شریعت مخالفان دي، دوي په دی عقیده دي، بنده چه و اخیري درجي ته د محبت د خداي ورسیږي، نو دده څخه هر تکلیف ساقطیږي، له دینه وروسته دده عبادت صرف تفکیر او فکر کول سي وبس، ﴿شرح الشفاء، ج ۲ ص ۵۱۶، شفاء القاضي عیاض، ج ۲ ص ۲۸۷،

که چاوچاته وویل: یو حلال غواړي که دوه حرام، که یي وویل: هرشی چه اول راورسیږي هغه غواړم، داسړی باید پر کفر باندي وبیریږي، که داسي بیخي محتاج او ضرورتمند نه وو،

اوکه يي وويل: حرام غوارم، ځيني علماء وايي: چه کافر کيږي،

﴿ حافظ الدين البزازي في فتاوي البزازيه، ج ۶ ص ۳۳۴، الحاوي في فتاوي الحصيري﴾ لوحه ۱۶۵، ﴿الفتاوي الهنديه، مرجع السابق، ج ۲ ص ۲۷۲﴾

ځکه ده هغه شی ښه وباله چه خدایتعالیﷻ بد او خبيث بللي دي، لکه څنگه چه الله ﷻ په قرآن عظيم الشان کښي داسي فرمايي:

﴿ قُل لاَّ يَسْتوي الْخَبِيْثُ والطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثُ﴾

سورة المائده د ۱۰۰ ،آيت يوه ټوټه، ووايه دويته ای محمده نه برابريږي خبيث او ناپاکه اوطيب اوپاك که ښه درښکاره سي تاته ډيروالي د خبيث ﴿ناپاکه﴾ تفسير: قرآن کښي الله ﷻ مورته فرمايی: چه پاك شيان مه حراموي، بلکه دهغو څخه په اعتدال سره متمتع سي، ددی مضمون د تکميل څخه وروسته د شرابو او ناپاکو او خبيثو شيانو حرمت يي بيان کړي، اوهم يي حرام شيان په ښکاره توگه حرام وګڼله، د تحريم په مناسبت د ځو نورو ضمني شيانو د بيانولو څخه وروسته اوس راته فرمايي: چه طيب او ناپاك يوشی ندی او هيڅکله بداو ښه نه سره برابريږي، يعني حلال او حرام، ناپاك او پاك، کره او ناکره په اموالو کښي اوهم داسي طالح او صالح، کافر او مسلم، کاذب

او صادق په اشخاصو کښې نه دي برابر، بلکه دغه حکم عام دی او په هرځه کښې جاری دی، لږ شي چه طيب او حلال وي له ډيرو خبيثو او حرامو شيانو ځخه ښه او بهتره دی، عقلمن ته لازمه ده چه هميشه طيب او حلال شيان اختيار کړی، او د خرابو او حرامو شيانو وخواته بيخي مه ګوری، اګرکه خورا ډير زيات اوښه درته ښکاره سي، نودغه سړي چه وويل: زما حرام تر حلالوخوښ دي او ښه يي وبلل اودځان دپاره يي حرام خوښ کړل، نو معنی داسوه چه د هغه شي ضد يي خوښ کړي، چه خدايتعالیﷻ دده دپاره اختيار کړي وو،

که چا په داسي حال کښې وويل: چه شراب يي خوړل، زه د خپل اسلام اظهار او اعلان کوم، بيا يي شراب پر سر پورته کړل ويل: دادی د اسلام اظهار مي وکړی، کافرسو،

په خلاصه کښې راځي: که چا ګناه کول، ويل: په دغه سره د اسلام اظهار کوم کافرسو، ځکه د شرابو چښل اود ګناه کول يي د اسلام او طاعت اظهار وباله، موضوع د شريعت يي مقلوبه اوسر چپه کړل، ﴿خلاصه، د طاهر بن احمد البخاري، لوحه ٣٥٩﴾

که فاسق د شرابو د خوړلو په مجلس کښې وښو صالحانو خلقوته وويل: راسي زموږ سره شراب وچښې چه اسلام

ووینې، کافرسو، که یي داخبره په داسي حال کښي وکړه چه بیخي دحال وتلي نشه نوو، دا مسئله ابن قطلوبغا، په خپل کتاب:﴿ من یکفر ولم یشعر﴾، کښي په لوحه ١٥، کي ذکر کړیده، اوهم شیخ محمد بن یوسف په خپله زبدة الفتاوي لوحه ٣٨٠، کښي ذکر کړیده، ﴿المحیط﴾

که چاوویل: شراب مي دومره خوښ دي چه بیله شرابو څخه مي هیڅ صبر نکیږي، ځیني وایي په دغه خبره سره کافرکیږي، که یي داخبره په خاطر د رضا او خوښي وی، اوکه یي مراد محبت نفسي اود طبیعت وي بیا نه کافر کیږي،

که چاوویل چه که چا ددغه جام یا چای جوشی څخه دغه شراب توي کړل جبرائیل‎ به یي په خپلو وزرو کښي ددي دنیا څخه پورته کړي کفر یي وکړي،

علی قاري صاحب وایي: د میم الفارضي اشعار چه د شرابو په باره کښي وایي او دحافظ او قاسمي اشعارچه د شرابو په باره کښي قصیدي ویلي دي ټوله کفري کلیمات او خبري دي کومي چه پر ظاهري معانیو باندي حمل دي د مثال په توګه لکه الحاد او اباحت.

که چا وویل: کشکی شراب خوړل او زنا کول او ظلم او وژل د انسان حلال وای، په دغه تمنا کولو سره کافرسو، ﴿جواهر﴾

دغه لوړه مسئله وبحث ته ضرورت لري، ده د خدايتعالیﷻ څخه د حرامو شيانو د حلالولو تمنا وکړل، دليل او سبب د کفر يي د گناه استحسان او ښه بلل دی، اوکه يي گناه ښه نه وي بللي بيا کافر نه بلل کيږي في الحاله،

په خلاصه کښي راځي: که چا داسي تمنا او ارزو وکړل، که چيري خدايتعالیﷻ دغه زنا نه وای حرامه کړی او قتل بغيرالحق او ظلم کول اود بل مال خوړل نه وای حرام کړی، کله ناکله خومره به ښه وای، کافرسو، اوکچا بيا داسي ارزو وکړل، کاشکی شراب نه وای حرام سوي او روژه نه وای فرض کړه سوی بيانه کافر کيږي، شايد فرق پکښي داوي چه اول شيان په ټولو کتابو کي باالمجمع حرام بلل سويدي، په نزد د ټولو رسولانو په خلاف د آخير رسول ځکه دده په زمانه کښي شراب نه وه حرام سوي، او روژه د رمضان د مياشتي پر مخکني امتو باندي فرض نه وه، صرف پر دغه امت باندي د رمضان د مياشتي روژه فرض کړه سول، ليکن ماته هيڅ فرق راته معلومه نه سو، ځکه هيڅ فرق نسته په مابين کښي د اول حکم الهي چه عام وو اوددغه بل حکم چه خاص دی،

په جواهر کښي راځي: که څوك د ټولو محرماتو څخه انکار سي، يايي په حرمت کښي شك وکړي، يا دا شيان لکه

شراب او زنا او لواطت او سود او ربا یو شی وبولي یا ووایي: چه گناه کول کبیره وي اوکه صغیره وي حلال او روا دی، کافر سو، ﴿فتاوي قاضي خان، ج ۴ ص ۴۶۸﴾ او ﴿مشایخ البلخ المرجع السابق، ج ۲ ص ۷۱۱﴾ دده د کفر سبب دده باطله عقیده او پر حرامو دحلالو گمان کول دی، داخو واضیحه او ښکاره خبره ده، چه کوچني گناهونه وروسته تر توبه کولو د لویو گناهوڅخه عفوه کیږي، په نزد د اهل سنت او جماعت، او معتزله وایي: د لویو گناهو څخه پرهیز کول کوچني گناهونه په خپله دمیانه څخه وړي، ﴿شرح د اصول الخمسه، لعبدالجباربن احمد، ص ۴۱ ،او مقالات الاسلامئین للاشعري ج ۱ ص ۳۳۲، او تفسیر نسفي مدارك التنزیل وحقایق التاویل بهامش تفسیرالخازن، ج ۱ ص ۷۱۱﴾

په یتیمه کښي راځي: که د چا یقین ووچه داشی حرام دی، اوپه حرمت باندي امر سویدي لیکن ده حلال وباله، کافر سو، هو:په دی شرط که دده یقین مطابق د شرعي وو،

که چا د شرابو خرڅول حلال وبلل، کافر سو. یعني که یي خرڅول د شرابو ومسلمانانو ته حلال وبلل، غیرله اهل الجزئیة څخه، باید داسي ونه ویل سي: ﴿ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ﴾ سورة البقره، ایت ۲۷۵، حرف لام دپاره د عهد دی چه هغه مشروعه خرڅول دي، له دي څخه

معلوميږي چه په اجماع د علماؤ د شرابو خرڅول ومسلمان ته غيرجايز او حرام دي، د آيت شريف ترجمه داسي ده، دغو كفارو به ويل: چه بيشكه هم داخبره ده چه تجارت خو داسي دی په جواز كښي لكه سود حال داچي حلال كړي دي الله ﷻ تجارت او حرام كړي يي دي سود، ﴿الطبری، ج ۳ ص ۱۰۳﴾ او تفسير د ﴿ابن كثير، ج ۱ ص ۳۲۶﴾

كه چا داسي شی حلال وباله چه د هغه په تحريم سره عالم او خبروي په دين او شرعي سره، لكه نكاح كول د محارمو سره او د شرابو چښل اود مړه حيوان غوښي خوړل چه په شرعي طريقه سره نه وي حلال سوي، اوويني خوړل، د خنزير غوښي خوړل بغير له ضرورته هغه هم په داسي حال كښي چه بديي هم نه ورڅخه راځي، ياد چا وژل په ناحقه سره، ياد چاداسي سخت وهل چه هغه ورڅخه عيبي يا ور څخه مړ سي، كافرسو، محمد بن حسن الشيباني چه د امام ابو حنيفه د ملګرو څخه دی وايي كه يي حلال هم ونه بولي، خو ددغو افعالو مرتكب كافر دی، دايو شاذ او نادره روايت دی، شايد دوي دا مسئله پر هغه چا باندي محموله كړيده چه د محرمي سره نكاح وكړي، ددغه حال سياق دلالت كوي پر حلال بللو د محرماتو په خلاف د نورو محرماتو ﴿نور، الله تعالی ﷻ د زړو مالك اوپه پټو احوالو سره خبر دي﴾والله اعلم

شارح علی قاري صاحب وايي: زه ددی فتوی تردید کوم چه حلال بلونکی د حرامو کافر دی، هو هغه وخت ورته کافر وايو که يي دغه حرام شيان د حلالو په شاني استعمالول، نه په صرف ويلو سره وحراموته حلال، اوکه د چاڅخه دا کار وکړه سو مگر حلال يي نه بلل فاسق دی، ﴿زبدة الفتاوی﴾ د ﴿محمد بن يوسف القرماني﴾ لوحه ۳۸۰، او ﴿فتاوي تتارخانيه ﴾ د عالم بن العلاء ج ۵ ص ۵۰۵،او مراتب الاجماع لابن الحزم، ص ۱۷۷ دار الکتب العلمية ﴿بيروت﴾

په فتاوي الصغری کښي راځي:که چا وويل: چه شراب خوړل حلال دی کافرسو که څه هم د غازيانو څخه د اهل بدر وي، لکه چه ځينو صحابه وو په زمانه کي د حضرت عمر بن خطاب ﷺ دا فکر کاوه،

په ديکښي مصنف وقصي ته د قدامه بن مظعون اشاره کړی ده، کله چه يي شراب خوړلي وه او حضرت عمر بن خطاب ﷺ ته يي راوستي، داقصه په بهيقي او دار القطني کښي راغلي ده، کله چه يي و حضرت عمرته د نشي په حالت کښي سره د شاهدانو راوستي، نو حضرت عمر امر وکړی چه په دورو باندي ووهي، قدامه ورته وويل: زما او ستا تر ميان کتاب اللهﷻ دی، حضرت عمر ورته وويل: پکوم کتاب الله ﷻ کښي

تا پیدا کړیدی چه زه تاونه وهم قدامه ورته وویل:
خدایتعالیﷻ فرمایي په قرآن کښي:
﴿ لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ آمَنُوا وَ عَمِلُوْا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا اِذَا مَا اتَّقَوْا وَآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوْا وَآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوْا وَاَحْسَنُوا وَاللّٰه يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴾ سورة المائده آیت ۹۳، یعني نسته پر هغو کسانو چه ایمان یي راوړي وي اوښه عملونه یي کړي وی، هیڅ شی گناه نسته پر هغه باندي په هغه شي کښي چه خوړلي وي دوي د حرمت څخه پخوا، کله چه په راتلونکي کښي ځان وساتي او ټینگ وي په ایمان کښي او کوي ښه عملونه، بیا ځان ټینگ کړي او ویي ساتي له محرماتو څخه، او ایمان راوړي په تحریم د محرماتو هم بیا وروسته له هغه څخه پرهیز کوي له شبهاتو څخه هم او احسان او نیکي کوي د خلقو سره، یا ښه کړي ټول اعمال خپل او اللهﷻ خوښوي نیکي کونکی نوخود ښه جزابه ورکړي، داوه دآیت لفظي ترجمه، راسي چه ښه څیړنه او تفسیر هم ددی ایت وکړو، په نهایت قوي او صحیح احادیثو کښي راغلي دي، کله چه د شرابو د تحریم آیاتونه نازل سول، نو اصحابو کرامو عرض وکړي، چه یا رسول اللهﷺ د هغو مسمانانو احوال به څه وي، چه د تحریم څخه دمخه یي شراب چښلي وه اوپه هغه زمانه کښي مړه سوي دي؟

مثلاً ځیني اصحاب وه چه شراب یي خوړلي وه او داحد په غزاء کښي شریك سوي وه، اوپه هم هغه حالت کښي په شهادت ورسیدل، چه په معده کښي شراب لا پراته وه، نو ددی په جواب کښي دغه آیت نازل سو د الفاظو د عموم اود نورو روایاتو د کتلو څخه ددی ایت مطلب دادی، هغه کسان چه د ایمان او نیك عمل اوکار خاوندان وي ژوندي وي اوکه مړه وي هغوي ته د یوه مبَاح شي په خوړلو کښي دا باحت په وخت کښي هیڅ مضایقه نسته خصوصا هغو کسانوته چه په عامو احوالو کښي په تقوی اود ایمان په خصائیلو سره متصف وي، اوبیا په همدي خصائیلو کښي پرله پسي ترقي کړي وي تر دي چه دایمان او تقوی په مدارجو کښي دومره ترقي کړي وي چه د احسان تر مرتبی پوري رسیدلی وي، چه هغه د یوه مؤمن په روحاني ترقیاتو کښي د انتهایي ترقیاتو مقام کیدی سي، او هغه ځاي ته د رسیدلو څخه وروسته حق تعالیٰﷻ دداسي بنده سره خصوصی مینه کوي. نو قدامه وایي: ماخو د رسول اللهﷺ سره د بدر او احد او خندق ټوله غزاوي کړیدی: نو جواب ورکړي وده ته حضرت عمر او حضرت علی او ابن عباس رضي الله تعالی عنهم اجمعین په باره کښي د معنی اوتاویل ددی ایت شریف وروسته د حضرت عمر په امر سره اتیادوري ووهل سو، ﴿حجرالعسقلاني﴾ ددی قصی سند

صحيح او قابل اعتبار يي بولي، د نور ښه معلوماتو دپاره ﴿سنن الدار القطنی﴾ وگوري ، ج ۳ ص ۱۶۶،
راسي په لنډه توگه حضرت عمر ﷺ درته معرفي کړم، حضرت عمر ﷺ دوهم خليفه داسلام وو،نوم يي امير المؤمنين ابو حفص عمربن خطاب بن نفيل بن عبد العزي العدوي القرشي دی، په مکه شريف کښي ديرلس کاله وروسته د فيل تر کال زيږيدلی دی، د قريشو د غټانو او اشرافو څخه وو، په جاهليت کښي د لوي مقام درلودنکی وو، د اسلام د مخه د رسول اللهﷺ اومسلمانانو سره يي سخته دښمني او عداوت کاوه، په شپږم کال د بعثت نبوي خدايتعالیﷻ په اسلام سره مشرفه کړي، دده په اسلام راوړلو سره خدايتعالیﷻ واسلام اودين او مسلمانانو ته عزت ورپه برخه کړي، عبدالله ابن مسعود وايي: د حضرت عمر اسلام يوه فتح اوبری ا وکاميابي وه، او هجرت يي نصرت وو، او امارت يي رحمة وو، تر هغو پوري موږ په کوروکي په پټه سره لمونځ کاوه، ترڅو چه حضرت عمر اسلام راوړي، کله چه مسلمان سو، دده په ميړانه راووتلو د بيت الله په حرم کښي مو لمونځ وکړي، په دغو غزاگانو کښي اشتراك کړيدی، بدر، احد، الخندق، بيعه االرضوان، خيبر، الفتح، حنين، اونوري ډيرو غزاگانو کښي برخه اخيستي ده، سخترين د خلقو وو پر کفارو باندي،

وروسته تر وفات د ابو بکر الصدیق ﷺ د خلافت وَظیفه ورپه غاړه سول دده په زمانه کښي د اسلام د ترقي لپاره ډیرښه خدمتونه وکړه سول اوډیر فتوحات وسول، خیر او عدل په هر ځاي کښي بر پایه او قایم سو د ابوء لؤفیروزي الفارسي چه د مغیره بن شعبه غلام وو د سهار په لمانځه کښي په زهرجن خنجر سره په ملا کښي وواهه سو چه وروسته تر درو ورځو وفات سو په کال ٢٣، هجري کښي، د نور معلومات دپاره ﴿اسد الغابة﴾ وګوري، ج ۴ ص ٥٢٥، او مرقات المفاتیح، د علی قاري، ج ١ ص ٩٢،

په محیط کښي راځي: هغه شی حرام ندی، که کونکی یي خبر نه وي چه داحرام دي، ددی خبری یا جملی څخه دا معلومه سول چه ده حرام قطعاً حلال وبلل، حال داچه هغه شی چه په دلیل سره حرام وي هغه حرام دي قطعي او جهل منافي دپوهي دي عذرنه بلل کیږي، ﴿فتاوي تتارخانیه، ج ٥ ص ٥٠٥﴾ او ﴿ بحر الرایق د ابن نجیم، ج ٥ ص ١٣٢، والاعلام بقواطع الاسلام لابن الحجر الهتیمي ص ٥٢،

په خلاصه کښي راغلي دي: که چا رمضان ته وویل: چه دا میاشت ډیره اوږده راغلل، په محیط کي راځي: که چا وویل: درنه میاشت راغلل یا وواییي چه درونند میلمه راغلي، یا وواییي: کاشکي درجب وروسته یا مخکي راغلي واى، په هر

حال کښي د رمضان د میاشتي سپکاوی یي وکړي یایي د موسمونو سپکاوی وکړي چه همدغه موسمونه فضل و خیرات اونعمت دی د جانبه د اللهﷻ. طبعا د هغو شیانو بد ویل چه خدایتعالی موږ دهغو په محبت سره امر کړي یو کفردی، ځکه کله چه به درجب میاشت داخله سول نو رسول اللهﷺ به وویل: ﴿اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ رَجَبٍ وَ شُعْبَانٍ وبَلِّغْنَا رَمَضَانٍ﴾ الحدیث روایه احمد في مسنده، ج ۴ ص ۱۸۰،

د خلاصه په مضمون کښي چه مؤلف وویل: په سپکاوي ویلو سره ومواسیموته سړی کافر کیږي، شارع علی قاري صاحب وایي: سپکوالی د موسمو یاد روژي سړی هغه وخت په کافرکیږي چه مراد قطعا د روژي د میاشتي سپکوالي وي اوکه یي دا مراد وي چه دغه موسم یا روژه ماسترړي کوي بیا نه کافرکیږي، ﴿فتاوي تتارخانیه، ج ۵ ص ۴۹۸﴾ په ظهیریه کښي راځي: که د روژي یا دنورو مبارکو اوښو میاشتي راورسیدلی، یوه سړي وبل ته وویل، یاره بیا پکښی وختلو، داخبره په شکل د مسخرو او سپکاوي ددغو ښو میاشتویي وکړل یا یي په دي خاطر وکړل چه طاعت د خدايﷻ را باندي دروند دی یا یي د لتي او ضعف په خاطر وکړل، یایي د رجب دمیاشتي د دخول سره وویل: بیاپه فتنو کښي ولولیدلو، یا په زحمتو او تکالیفو اخته سولو، کافرسو، اوکه یي ددی خبرو

څخه صرف مراد د ځان ستړیا وي بیا نه کافر کیږي، ځکه دا یو سخت او غرنی و جبلي کاردی، د بنده د طاعت او اختیار څخه وتلي کاردي، پربنده باندي په اندازه د قدرت مشقت سته، یاداچه خدایتعالیﷻ پر بنده باندي دومره کار اچوي چه دده د طاعت څخه وتلي نه وي، په احادیثو کښي ښه د طاعاتو هغه دي چه په هغه کښي انسان ښه زحمت او تکلیف وباسي، ابن قیم وایي: ددی خبري اصل ما پیدانه کړي، او شیخ علی قاري وایي: چه دا خبره صحیح ده لکه چه په صحیحینو کښي راځي، روایت دی د عایشي؄ څخه چه فرمایي: ﴿ اَلْاَجْر عَلیٰ قَدْرِ التَعْبِ﴾ یعني مزدوري په اندازه د ستړیاده، مدارج السالکین، ج ۱ ص ۸۵، او کشف الخفاء، ج ۱ ص ۱۵۵،

که چاوویل: دا روژه څومره اوږده سول، نن څوهمه روژه ده؟ بیخي یي ستړي کړم، یاووایي: والله اوس مي نو بد ورځخه راغلل، دغه خبره د کفر ده، په خلاف د ستړیا او ملال، ځکه دغه لفظ ته د ستړیا او ملال په عربي ورته ﴿السامه﴾ وایي چه دا کلیمه خاص د ملایکو دپاره ده، لکه څنګه چه اللهﷻ فرمایي: ﴿ وَهُمْ لاَ یَسْئَامُوْنَ﴾ سورة فصلت آیت ۳۸، یعني دغه ملایکي د عبادت کولو څخه نه ستړي کیږي، نوداچه د شپی او ورځي عبادت کوي او تکالیف وزحمتونه تحمل کوي دپاره د رضا د خدایﷻ داخوي او خصلت د ملایکو دي،

په محيط كښي راځي ، كه چا وويل: د اطاعتونه خو خدايتعالیﷻ پر موږ باندي يو عذاب ايښي دی او داخبره يي بيله تاويل څخه وکړل، کافر سو، دا عبادات او طاعات خدايتعالیﷻ په دي دنيا كښي يو سبب گرځولی دی، چه په آخرت كښي الله ﷻ ثواب راكړي او عذاب را څخه ليري كړي، كه نه اللهﷻ د ټول عالم څخه غني او بی پروا دي،اوهم ددوي د عذاب او ثواب څخه، او كه چيري د ويونكی مراد د عذاب څخه ستړيا وي بيا نه كافر كيږي، ﴿فتاوي تتارخانيه، ج ٥ ص ۴۹۸ ، او كتاب د ابن قطلوبغا كفرولم يشعر، لوحه ۱۶﴾

كه چابيله تاويله څخه وويل: كه خدايﷻ دغه روژه نه وای راباندي فرض كړي نو ښه به وای، كافرسو ، ځكه خيراو ښه والي په هغه شي كښي دي چه خدايﷻ يي زموږ دپاره غوره او خوښ او اختيار كړي، بايد ده ويلي وای چه خدايتعالیﷻ دی د كولو قدرت راكړي، اورا باندي اسانه دي كړي، ځكه الله ﷻ پرهرڅه باندي ښه قادر دي، ﴿خلاصة الفتاوي﴾ د ﴿طاهر بن محمد البخاري، لوحه ۳۵۷،

په خلاصه كښي راځي، كه يوه سړي يوه كوچني گناه وكړل، بل سړي ورته وويل: توبه وكاږه، ده په جواب كښي ورته وويل: څه مي وكړل چه توبه وكاږم، هغه وخت به توبه كاږم چه دومره گنا وكړم چه وتوبي ته يي احتياج پيداسي، داخو گناه نده،

کافرسو په نزد د اهل سنت او جماعت ځکه انکار د گناه څخه کفردي په خلاف د معتزله وو ځکه معتزله گناه صغیره گناه نه بولي،

په یتمیه کښي راغلي دي که چا وویل: تر هغو پوري توبه نه کاږم ترڅو پوري د خدایتعالیﷻ اراده ونسي یعني رضاء د خدايﷻ یي عذر وباله، کافرسو، ځکه گناه کاره ته نه ښایي چه په وخت کښي دگناه کولو ځان په قضاء او قدر پوري معذوره وگڼي، یاوایي چه دغه به د خدايﷻ رضاوي، که رشتیا داسي وي، نو خدایتعالیﷻ به د کفارو په اړه داسي نه ویلاي چه فرمایي: ﴿ سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا﴾ سورة الانعام، آیت ۱۴۸، یعني ژردي چه وبه وایي هغه کسان چه شرك یي کړیدی که اراده فرمایلي وای الله په طریقه د رضا سره ددوي په نه شرك کولو سره یعني نه به موږ شرك غوره کړي وای او نه زموږ پلرونو، بلکي معذرت په رضاء سره د خدايﷻ هغه وخت جایز دی چه انسان اول توبه وکاږي بیایي قبولیت په اللهﷻ پوري مربوط کړي،

په محیط او خلاصه کښي راځي: که وفاسق ته وویل سي ته هر سهار خدايﷻ او د خدایتعالی مخلوق ازاره وی، که ده وویل: ته ښه راکړه یایي راوښیه چه زه هغه وکړم، کافرسو، اوکه یي

داسي اراده وي چه راته ووايه څنګه وکړم چه خداي ﷻ او دخداي ﷻ مخلوق راڅخه ازار نسي بيانه کافر کيږي،
که چا وګناکاره ته وويل: ايا دا د مذهب لاره ده؟ کافر سو، که مراد د مذهب څخه شرع اودلاري څخه حق وي، اوکه دا يي مقصد او مراد نه وي نو بيا خو پدی خبره کښي شك نسته چه د ګناه کولو هم لاري او مذهب سته، دالاري د مثال په توګه د کفر لار وي ياد بدعت چه دواړي لاري داور او بدو مذهبو دي، لکه څنګه چه الله ﷻ دخپلو بندګانو د لارښوني لپاره په قرآن کښي فرمايي: ﴿وَأَنَّ هٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيماً فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ ذَالِكُمْ وَصَّى كُمْ بِهِ﴾ سورة الانعام آيت ۱۵۳، دغه زما لاره ده برابره وجنت ته نو متابعت وکړي تاسي ددغي لاري اومه کوي متابعت د نورو کږو لارو، نوتارپه تار به کړي دغه متابعت تاسي دسمي لاري څخه يعني د پورتنيو مذکوره احکامو تعميل او د الله ﷻ د عهد عملاً او اعتقاداً پوره کول هم دغه سمه لاره ده، ﴿صِرَاطَ الْمُسْتَقِيمْ﴾ ده چه د طلب او غوښتني تلقين د ﴿الفاتحه﴾ په سورت کښي په ﴿اهدِنَاالصِرَاطَ الْمُسْتَقِيمْ﴾ سره سويدي دغه لاره تاسوته درښودل سويده، اوس پر هغي باندي برابر تلل ستاسو کار دي، هرڅوك چه پرته له دغي لاري څخه پر بله لار باندي تګ کوي نو دالله ﷻ دلاري څخه بی لاري او ګمراه کيږي،

یادونه: د عبدالله بن عباس څخه راویت دي چه دغه دري ایتونه د مذکوره ایت په شمول چه پر لسو احکامو باندي مشتمل دي د محکماتو څخه دي چه په هیڅ شریعت کښي یي نسخه نده راغلي،

په محیط کښي راځي: که څوك و فقیرته د حرام مال څخه شي ورکړي او د خدایه څخه یي ثواب غواړي، کافرسو، بیا هم دا مسئله و بحث او بیان ته ضرورت لري، هغه داچه که دچاسره حرام مال موجود وي، هغه مامور او مجبور دی چه دغه حرام مال باید صدقه او خیرات کړي، دی داسي بلل کیږي لکه یو چاچي په پیسوددغه مال د ویشلو دپاره مزدور کړي وي، اوکه یي دغه حرام مال چه ده ته پروت وو پر فقیرانو باندي صدقه کړي یوه نوع د انواعو څخه د طاعت بلل کیږي اول خو باید تلاښ وکړي دغه مال و خپل مالك ته ورسوي که ممکن وه وبل چاته دي ورنکړي دپاره د ریا او یاددي دپاره چه د امیرانو او حکومتي خلقو په میان کښي خپل نام او نښان لوړ کړي، خلاصة الفتاوي، لوحه ۳۵۶، او زبدة التفاوي، لوحه ۳۸۰،

په خلاصه کښي راغلي دي، که فقیر خبر وو چه دغه سړي ماته حرام مال په خیرات یا صدقه کښي راکړي، خوبیا یي هم وهغه

ورکونکي ته د جنت او امن دوعاء وکړل،یا فقیر دوعاء ورته وکړل ده وویل آمین، کافر سو، خلاصه لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۶،

په ظهیریه کښي راځي: که چا ویوه فقیر ته حرام شی ورکړي او دخدای ﷻ څخه یي د ثواب غوښتنه وکړل، کافر سو، که فقیر پوهیدي چه ماته یي حرام شی راکړي بیایي هم دوعا ورته وکړل اود خدای ﷻ څخه یي ورته امن وغوښتي، یا هغه ورکونکي وویل آمین، دواړه کافیران سول، ځکه دوعاء او امین د طاعت او عبادت پر کولو باندي وي، نه پر حرامو او پر ارتکاب د گناهو او حال داچي حلال د حرامو په شاني ندي، «الظهیریه» لوحه ۱۳۶، هو داخبره سته هغه وقت دواړه کافران بلل کیږي، که ورکونکي ددغه حرامو په ورکولو سره د آخیرت ثوابونه غوښتل او ځان یي د اخیرت د عذابو او د دنیا د گناهو څخه په دغه حرامو سره خلاصون غوښتي،

په خلاصه کښي راځي، که چا یو بد کار وکړي ده ورته وویل:ښه دي وکړل، حال دا چه هغه شی شرعاً بد وي، یایي ورته وویل: کریم یي سخاوت دي وکړي، کافرسو. دا مسئله داسي ده لکه سړی چه د سارق او قاتل په وژنه کښي وچاته ووایي: ښه دي وکړل دیوه فاسق اوبد سړي زوي د اولي پلا دپاره شراب وچښل دی وخپلو قریبانو او دوستانو ته راغلي

یا خپلو انډیوالانو ته راغلي پیسي یا ګلان یا میوي یي ورباندي وپاشلي ټولو کفر وکړي که څه هم یي ټول نکړل همدارنګه کافران کیږي که یي ورته وویل: چه اول چښل دي مبارك شه، ځکه ده دیوی داسي ګناه مبارکي ورکړل چه ترټولو ګناهو بده و اقبحه ګناه ده. داسي معنی لري لکه دوي چه حرام، حلال وبلل سوه دمبارکي ورکولواو تبرك سره،بله معنی یي داسي هم کیدای سي،

که یو پاچا یا سلطان یا امیر یایوه واعظ یا خطیب یا کوم دیني مدرس خپل لباس وکښي اوپه عوض کښي نور حرام لباس واغوستي ملګري او انډیوالان یي ورته راغلل ویل مبارك دي سه، ټوله په ګناه او کفر کښي شریکان دي که یي قصد دمبارکی دلباس وي، اوکه یي مبارکي د منصب وي پروانلري،

همدارنګه که چا د شرابو د چښلو په وقت کښي وویل: خوشحاله دی وي هغه کسان چه زموږ په خوشحالي خوشحالیږي، او خراب او برباد دي وي هغه کسان چه زموږ په خوشحالي او فرحت نه خوشحالیږي، کافرسو. ځکه چه خوشحالي رضاء او محبت دي، نو رضاء په ګناه سره په خپله ګناه ده او دګناه کاره سره مینه او محبت ورسره کول پر ګناه باندي تعاون او مرسته کول دي،

ګناه کفر او تاوان اوخساره ده،او همدارنګه انسان ته په ګناه سره تاوان او نقصان رسیږي اوپه طاعت کښې له هره جانبه ښه ګټه ده، لکه ښنګه چه اللهﷻ په قرآن کریم کښې فرمایي ﴿فَمَارَبِحَتْ تِجَارَتُهم ﴾ سورة البقره، آیت ١٣، یعنې دغو منافقانو د ښېل منافقت او ګمراهي په تجارت کښې هیڅ ګټه ونه کړل، دغه دیرلس آیتونه دي په باره کښې د منافقانو په سورة بقره کښې، همدارنګه اللهﷻ د قرآن عظیم الشان په بل ځاي کښې فرمایي: ﴿ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبوا بِلِقَاءِ اللهِ﴾ سورة الانعام آیت ٣١، یعنې په تحقیق سره تاوانیان سوي او تباه سوي دي هغه کسان چه درواغ بولي ملاقات کول د اللهﷻ سره، په عقبا او آخیرت کښې، تفسیر د آیت داسي دي چه د انسان لوي شقاوت او بدبختي خو داده چه د ﴿لقاء الله﴾ ښه انکار وکړي، اود ژوندانه دغه لوي مقصد درواغ وبولي ترڅو چه نابېره مرګ ورباندي راسي، یايي قیامت پرسر ودریږي، بیانو هلته د حسرت او د افسوس لاسونه سره موږي، چه های افسوس ماپه ښېل دنیوي ژوند کښې د قیامت د ورځی د تیاری لپاره څومره غیرتلافي تقصیر او تاوان کړیدي، په دی وخت کښې به له دغه حسرت او افسوس ښه هیڅ شی وده ته پلاس نه ورځي د جرمونو او شرارتونو هغه دروند بار او پیټي چه په دنیا کښې ده په شاکړی وو، په دی ناوخته تاسف او

تحسر سره هیڅ نه سپکیږي، نو کله چه قضیه برعکس سول، نو ولویدي په کنده کښي د کفر او ورك و سرګردان سو، د بلاوو په ځنګل کښي د خلاصون دلاري پیداکیدل بیا اسانه او ساده کا رنه دی.

که چا وویل چه : د شرابو حرمت په قرآن سره نه دی ثابت کافر شو، ځکه ده د قرآن پر دلیل باندي اعتراض وکړي، او د تفسیر څخه د اهل عرفان منکره سو، حال داچه الله ﷻ په قرآن کریم کښي فرمایي: ﴿ يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ﴾ سورة المائده ایت ۹۰،

ترجمه : ای هغه کسانو چه ایمان مو راوړي دي، بیشکه هم داخبره ده چه شراب او قمار ﴿خمار﴾ او بتان او غشي دفال دا ټوله پلیت نجس او مردار دي، داکار د شیطان دی، نو ځان وساتي تاسي له دی څخه لپاره ددی چه نجات حاصل کړي تاسي د عذاب څخه په دغه ځان ساتلو سره ، داوه د آیت لفظي ترجمه اوس به یي تفسیر وکړو، ده انصاب او ازلام تفسیر د المائدي د سورت په دریم آیت کښي تیرسویدي چه الله تعالی ﷻ فرمایلي وه: ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَاَنْ تَسْتَقْسِمُوْا بِالْاَزْلَامِ﴾ یعني مه د هغه شي غوښي خوري چه غیر د الله ﷻ څخه

د بل شي پنامه سره حلال سوي وي، يايي تقسيم کړي وي په غشؤ سره، په مخکي هم تيرسوي وه په نسبت د شرابو د څښلو په متعددو آياتو کښي لکه دغه آيت د سورة البقرى چه پکښي الله ﷻ فرمايي: ﴿ يَسْئَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ سورة البقرة ايت ۲۱۹. ستا څخه به د شرابواو قمارو په باره کښي پوښتنه وکړه سي اګرکه په دغه آيت کښي وتحريم ته د شرابو صريحه اشاره سته مګر څنګه چه په هغه کښي په صاف ډول سره د شرابو د پريښودلو حکم نه وو، نو ځکه جناب حضرت عمر﷛ د هغه د اوريدلو وروسته داسي وويل: ﴿ اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا بَيَانًا شَافِيًا﴾ يعني الهي صافه او صريحه وکامله لاره راښکاره کړه، وروسته بل آيت د جانبه څخه د خداي ﷻ راغلي: ﴿يَا اَيُّهَاالَّذِيْنَ آمَنُوْا لاَ تَقْرَبُوا الصَّلاَةَ وَاَنْتُمْ سُكَارٰى﴾ سورة النساء ايت ۴۳، يعني اى هغو کسانو چه ايمان مو راوړيدي مه نژدي کيږي تاسيَ و لمانځه ته په داسي حال کښي چه تاسي مست ياست دنشي څخه، په دى آيت کښي هم د شرابو د تحريم صريح او قطعي امرنه وو، که د نشى په حالت کښي د لمانځه دکولو څخه ممانعت سوي وو، او دغه قرينه وه چه په دى خبره باندي چه داشى عنقريب بيخي حرام کيدونکى دى مګر څنګه چه په عربو کښي د شرابو څښل ډير زيات رواج درلودي، د هغو څخه د فعتاً په يوه پلا ځان ساتنه د مخاطبينو لپاره اسانه او

ساده کارنه وو. نو ځکه په نهایت حکیمانیه طریقه سره یي، متدرجاً په تدریج سره اول یي د شرابو نفرت په زړو کښې ور واچاوه، بیا یي کرار کرار د تحریم د حکم سره عادي کړل لکه چه حضرت عمر ﷺ ددغه دوهم ایت د اوریدلوځخه بیا هغه مخکي الفاظ تکرار کړل چه هغه داوه: ﴿ اَللّٰهُمَّ بَيِّنْ لَنَا بَيَاناً شَافِياً﴾ ځو دالمائدي سورة دغه آیاتونو راغلل چه اوس یي موږ په تلاوت سره مشرف سولو، چه هغه دغه ایتونه دي: ﴿ يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اِنَّمَا الْخَمْرُ﴾ څخه بیا تر ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُنْتَهُوْنَ﴾ پوري نازل سول، چه د بت پرستي په شان په دی کښي په ډیر صاف او ښکاره ډول سره ددي ناولي اومردار شي څخه د پرهیز کولو هدایت راکړه سوي دي. لکه چه حضرت عمر ﷺ د ﴿فَهَلْ اَنْتُمْ مُنْتَهُوْنَ﴾د اوریدلو څخه وروسته په زوره ناري کړلي، ﴿ اِنْتَهَيْنَا اِنْتَهَيْنَا يَا رَبَّنَا﴾ ای ربه زموږ. بس خلاصه سول خبره، خلقو د شرابو خومان مات کړل، شرابخانی د شرابو څخه تشي او خالي سولی، د مدیني منوري په کوڅو کښي د باران د اوبو په شاني شراب وبهیدل، ټولو عربو دغه مردار او ناولي شراب پریښودل، اود رباني معرفت او د نبوي محبت او اطاعت او پاکي میني په شرابو مخموره سول، او ددی ﴿أُمّ الْخَبَائِثْ ﴾ په مقابل کښي د محمد ﷺ جهاد داسي کامیاب سو، چه دهغه بل مثال په تاریخ کښي نسي پیدا کیدلای، د

الله ﷻ قدرت ته وګوري، دغه شی چه د پاك قرآن له خوا په دومره شدت د ډیرو پیړیو راپه دیخوا منع کړه سویدي نن ورځ د ټولو څخه د زیاتو شرابو استعمالونکي هیوادونه لکه امریکا او روسیه او نورهم، ددغو شرابو د خرابي او وراني او ضرر احساس کوي، اود شرابو په کمولو اود میانځه وړولو کښي زیار او کوشش وتلاښ کوي، ﴿فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ وَالْمِنَّةُ﴾

په خلاصه کښي راځي: که چا وویل: څوك چه نشي شیان نه چیښي هغه مسلمان ندي، کافرسو. ﴿خلاصة الفتاوي﴾

که چادخرمادشرابو چښل دنشي تر حالت پوري حلال وبلل، کافرسو.

په خلاف د هغه چاچه لږ چښل یي حلال بولي، لکه مذهب د شافعیانو خو موږ وایو هر شی چه ډیر یي سړی نشه کوي د هغه لږهم حرام دي، شیخ علی القاري چه داخبره وشافعي ته منصوبه کړیده، هغه داچه دلیل د اصحابو د سنن اربعه وولري، هغه دادي سنن الترمیذي، ج ۳ ص ۱۹۴، سنن ابي داود، ج ۳ ص ۳۲۷، و سنن النسایي مع شرح السیوطي وحاشیة السندي، ج ۸ ص ۳۰۰، وسنن ابن ماجه، ج ۲ ص ۱۱۲۵،

که چاوویل: د ښځي سره نزدیکت کول په حیض کښي حلال دي کافرسو، او همدارنګه دښځي لواطت کول که چا حلال وباله کفردي، په هر حال کي که حائیضه وي یانه وي، ﴿خلاصة الفتاوي، لطاهر بن احمد البخاري﴾ لوحه ۳۵۶، په اوله مسئله کښي خلاف دي لکه څنګه چه سیوطي په خپل تفسیر الدر المنثور کښي ذکر کړیدي چه احتیاطاً د خپلي حایضي ښځئ سره پرجماع کونکي باندي باید د کفر حکم ونکړه سي،
په محیط کښي راځي: که چا د حایضي ښځي سره جماع کول حلال وبلل کافر سو، او ځیني وایي حلال بلل د جماع دحایضي ښځي تر هغو چه حایضه وي بیله حیلي څخه بدعت او ګمراهي ده، نه کفر، ځکه چه داحرام دي بیله خلاف څخه چه حرمت یي په حدیث سره ثابت دي، روایت دي د سابایا او طاوس څخه چه رسول الله ﷺ وویل: ﴿لاَ تُوْطَا حَامِلٌ حَتّى تَضَعَ وَلاَ غَيْرَ ذَاتَ حَمْلٍ حَتّي تَحِيْضَ حَيْضَةً ﴾ ابو داود، ج ۲ ص ۲۴۸، ترجمه: حمل درلودنکي ښځي سره نزدیکت مه کوي ترڅو خپل حمل ایږدي اود هغي ښځي سره نزدیکت مه کوي چه تر اوسه لا حایضه سوي نه وي کله چه حایضه سول یو حیض وربا ندي تیرسو بیا پروا نلري،

همدارنگه روایت دي: د رویفع بن الانصاري څخه چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په ورځ د حنین «لاَ يَحِلُّ لاَمْرِى يُؤمِنُ بَاالله وَالْيَوْمَ الآخِرِ اَن يُسْقَى مَائَهُ زَرْعِ غَيْرِه. يعني اتيان الحبالي، وَلاَ يَحِلُّ لِاَمْرِى يُؤمِنُ بِاالله وَالْيَوْمِ الآخِرِ عَلَىاِمرَاَةٍ حَتَّى يَسْتَبْرَئها» الحديث حسنه الباني في کتابه صحيح ابي داود، ج ٢ ص ۴٠۵، ترجمه: نه ده روا وهغه چاته چه پر خداي ﷻ او پر ورځي باندي د اخیرت ایمان ولري چه خپلي اوبه دبل په ځاي کښي استعمال کړي، یعني نه ښایي ورته چه دحاملي ښځي سره نزدیکت وکړي اوهم نه ښایي وهغه چاته چه پر خدايﷻ اوپر ورځي د قیامت باندي ایمان لري چه دداسي ښځي سره نزدیکت وکړي چه تر اوسه لاحایضه سوي نه وي، په «فوزة النجاة» کښي راغلي دي: د حایضي ښځي سره جماع کول حلال بلل کفر دي او د استبراء سره جماع کول بدعت او گمراهي ده، «عالم بن علاء د تتارخانیه»، مؤلف، ج ۵ ص ۵٠۶، او کتاب د«ابن قطلوبغا»، «مَنْ يَكْفُرُوَلَمْ يَشْعُرُ»، لوح ١۶،

یادونه: اِستِبْرَاء وهغي ښځي ته وایي: چه تر اوسه لا دحیض دراتللو ومرحلي ته نه وي رسیدلي، «قاموس المحیط للفیروزابادی، ص ۴٢،

په محیط کښي راځي: سره د اعتقاد د نهي په جماع کولو د استبراء سره او قایلیدل يي په حرمت سره بیا حلال بلل د جماع

داستبراء سره کفر دي، او امام شمس الائمة يي کفرنه بولي بغير تفصيل سره او همدارنگه ابن رستم يي کفر نه بلکي گناه کا ره اوبدعتي يي بولي،
گرانه او عزيزه لوستونکي ښه به داوي چه دغه دوه عالي رتبه عالمان درته معرفي کړم او درويي پيژنم څوموړ ته ددوي فتوی ښه د اعتبار او يقين وړ وگرځي. اول شمس الائمه دده اصلي نوم، ابو بکر محمد بن احمد بن ابي سهيل شمس الائمه السرخسي دي، دی د لوړ علم او عرفان خاوند وو په علومو اسلامي او ديني وو کښي کوم چه دده په وخت او زمانه کښي مروجه وه، او رواج يي درلودی د ډيري مودی دپاره په سبب د نصيحت کولو وخاقان ته بندي کړه سو، په خپل ښه حفظ او ذکاوت سره زيات مشهوره سو، ډير کتابونه يي تصنيف او تاليف کړيدي چه يو د هغو يي مبسوط دي چه په بنديخانه کښي يي دياده څخه ليکلي دي، او شرح د سير الکبير ده چه پکښي د بنديخاني خاطرات يي راجمع کړي دي، بل کتاب يي اصول الفقه ده، په کال ۴۹۰، هجري کښي وفات سو، د نور ښه معلومات دپاره «الجواهرالمضيئة» وگوري د ابن ابي الوفاء، ج ۳ ص ۷۸، اوتاج التراجم د ابن قطلوبغا وگوري ص ۱۸۲ تر ۱۸۵، پوري،

دوهم ابن رستم دي چه اصلي نوم يي ابو بکر ابراهيم بن رستم المرزوي دي، فقه يي د محمد بن الحسن الشيباني څخه زده کړل، دده څخه ډير نادره روايتونه سويدي په نشاپور کښي په کال ۲۱۱. هجري کښي وفات سو په داسي حال کښي وحج ته د تللو نيت يي درلودي. ﴿جواهر المضيئه لابن ابي الوفاء، ج ۱ ص ۸۰﴾

په فتاوی الصغری کښي روايت دي دابن رستم څخه، که چا داسي تائويل وکړي چه نه کول دپاره د تحريم نه دی، يايي نهي نه پيژندل يا حديث دنهي نه وي ورته رسيدلي، نه کافرکيږي، اوکه يي حلال وبلل سره د اعتقاده چه نهي دپاره د حرمت دی، کافر کيږي. او ابن رستم وايي: چه دا مطلقا کفردي بيله تفصيل څخه، ﴿فتاوي الصغری، لحسام الدين عمربن عبدالعزيز، لوحه ۳۵۶﴾

په يتيمه کښي راځي، که چا دا روا وبلل يايي مباح وبلل چه د پلار ښځه په نکاح کړي او وطی يي کړي، مرتد سو.

که چا داسي تمنا وکړل کاشکي دا شيان حرام نه وای لکه ظلم کول او درواغ ويل او د زور شاهدي ورکول، کافرسو.

که چا وويل: کشکي خوړل سربيره پر مړتيا باندي حرام نه وای کافرسو.

ځکه ددی خبري اباحت او ښه بلل دغه لیاقت نلري ځکه ډیر خوراك د صحت او روغتیا لپاره مضر دي، لکه څنګه چه په احادیثو کښي دا خبره په اثبات رسیدلي ده، په بیان کښي د زیاتي مرتیا او د ډیر خوراك ضررونه یي په احادیثو کښي بیان سوي دي، رسول اللهﷺ فرمایي: ﴿ مَا مَلأَ آدَمِيٌّ وِعَاءً شَرًا وَهُوَ بَطنٌ﴾ ترجمه: هغه بني آدم ندي چه خپله د شرکځوره ډکه کړي چه هغه نس دي، همدارنګه فرمایي: ﴿ يُحْسَبُ ابْنَ آدَمَ آكلاَتٌ تُقْمَن صَلْبَهُ فأنْ كَانَ لاَ مَحَالَة فَثُلثٌ لِطعَامِه وَ ثُلثٌ لِشَرَابِهِ وَ ثُلثٌ لِنَفْسه﴾ الحدیث ترمیذي روایت کړیدي په خپلو سننو کښي، ج ۴ ص ۱۸، ترجمه، ابن آدم ته ښایي چه دومره وخوري چه ځان ژوندی په وساتي، اوکه بیخي چاره نه وي نوداسي دي وخوري، یا داد شر کځوره دي په دی شکل سره ډکه کړي یعني پر درو حصو باندي دي تقسیم کړي، یوه دریمه دخوراك بله دریمه دپاره د چښلو بله دریمه د تنفس یعني ساه کښلو دپاره،

غزالي په خپل کتاب احیاء العلوم کښي راوړیدي داسي حدیث چه فرمایي: ﴿ اَلْبِطنَةُ أَصْلُ الدَّاءِ وَالْحَمِيَةُ أَصْلُ الدَّوَاءِ﴾ الحدیث ترمیذي، ترجمه: نس ځاي د امراضو او ناجوړیو دي او لوږه اصلي دواء ده، شیخ عراقي وایي: ما ددی حدیث اصل

پیدا نکړي د نورو معلوماتو دپاره احیاء العلوم وګوري، ج ۳ ص ۸۷، دارالمعرفة بیروت،

حضرت عمر ﷺ روایت کوي، د رسول اللهﷺ څخه چه هغه وفرمایل: ﴿ اَیّاکُمْ وَالْبِطنة فِي الطعَامِ وَالشّراب فَانّها مُفْسدَةٌ لِلْجَسَد ، مَوْرِثَةٌ لِلْفَشَلِ مُكْسَلَةٌ عَنِ الصّلَاةِ وَ عَلَيْكُمْ بِاالقَصْد فِيْهِمَا فَانّهُ اَصْلَحُ لِلجَسَد وَاَبْعَدُ عَنِ السّرَفِ وَانّ اللهَ لَيَبْغَضُ الحِبْرُالسّمِيْن،﴾ كَشْفُ الْخَفَاء لِلْعَجلَوني، ج ۱ ص ۲۴۸، او کتاب الاسرار دا و شیخ علی قاري ته مرفوع کړیده، ص ۳۰۹،

ترجمه: د حد یث داسي ده، خامخا احتیاط او ساتنه وکړي د نس خپل په خوراك او څښاك کښي، ځکه ډیر خوراك د انسان بدن خرابوي او سړي ته ناکامي او ناتواني په میراث راوړي په ژوند کښي، د لمانځه د کولو څخه سړی لټ او کاسل کوي، تاسوته لازمه ده چه په خوراك او څښاك کي د اقتصاد او میانه روي څخه کاروا خلي ، ځکه دغه اقتصاد په خوراك او څښاك کي د انسان بدن روغ او سالم ساتي، اوهم یي دناحقه خرڅ او اسراف څخه ساتي، او خدایتعالیﷻ نه خوښوي چاغ او پنډ ،

په جواهر کښي راغي: که چا وچاته وویل: ولي ذکات نه ورکوی؟ که هغه وویل: تر څو به دا جرمانه ورکوم، کافرسو.

اوکه یي داسي وویل: پرچاباندي واجب دي ذکات چه ورییي

کړم پروا نلري، اوکه يي وويل: چه ذکات نه ورکوم کافرسو، تفصيل د مسئلي مخکي تير سويدی،

او ځيني علماء کرام وايي: که يي دغه خبره پر طريقه د رد او انکار د حکم څخه دخدایﷻ وکړل، يعني د وجوبيت څخه د زکات منکر سوبيا کافردي، اوکه د وجوبيت څخه منکره نه وي کافر نه دی، فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۴۹۷، او بحرالرايق د ابن نجم، ج ۵ ص ۱۳۲،

که چا وچاته وويل: زماپر حق باندي معاونت او مرسته وکړه، که هغه وويل: پر حق باندي خو هر څوك مرسته کوي، اما زه بيله حقه ياپه ظلم کي يي هم درسره کوم، ځيني علماء وايي په دغه خبره سره کافر کيږي، که يي ظلم کول او ناحقه کول حلال وبلل، ياپه سپکاوي او مسخرويي داسي خبري وکړلی، کافرکيږي، په خلاف د هغه چاچه دا کار د اميرانو او قضاء بولي اويا وو ايي: چه داخو د علماؤ کار دي، په داسي حال کښي بيا د کفر دپاره هيڅ دليل نه ليدل کيږي، ﴿ فتاوي الهنديه﴾ ج ۲ ص ۲۸۰، او کتاب د ﴿ ابن قطلوبغا، من يکفرولم يشعر﴾

په خلاصه کښي راځي: که يو ځاي ته د امر باالمعروف او نهي عن المنکر خلق ورغلل، د هغه ځاي خلقو وويل: بيا غوغايان او جنجاليان راغلل، پردغو خلقو باندي د کفر بيره ده، که يي

دا مقصد وي چه دا امر باالمعروف يوه غوغا او جنجال دي، په خلاف ددی چه دايي يو تکليف او سترپيا بلل، ﴿فتاوي الخلاصه، لطاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۶﴾

په فتاوی الصغری کښي راغلي دي، که چاوويل: دا مجوسي دی او د خداي ﷻ څخه بيزاره دی، که هغه سړي په دغه خبر سو او همداسي هم وکړل، کافرسو. قاضي امام ابو بکر محمد بن الفضل وايي: ښځه دی ورڅخه بيله کړه سي که چا وويل: فلانکی يهودي يا نصراني دی، که هغه داسي وو، يايي داسي وکړل او دی يي په کولو سره خبر وي، چه دی به داسي سي، کافرسو.﴿فتاوي الصغری، لوحه ۳۴۰﴾

په جواهر کښي راځي: که د چا دانيت او عقيده وي چه کافر کيږم،اوکه يي دغسي وکړل کافرسو، ځکه دده رضا په دغه کار سره کفر دی، داپه دی پوري اړه نلري چه ودريږه چه سی اوداکار وکړي، بلکل په نيت کولو سره في الحال کافرکيږي، واستقبال او اينده ته ضرورت نستته،

په فتاوی الصغری کښي راځي که چاوويل: څوك خبر دی چه ما دا کار کړيدي، که هم يي نه وي کړي بيا هم کافر سو، ځکه پر خدايتعالی ﷻ باندي يي درواغ وويل، لکه چه خدايتعالی ﷻ په قرآن کښي فرمايي: ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِباً﴾ سورت العنکبوت، ايت ۶۸ ، ترجمه: څوك دي ډير ظالم

دهغه چا ځخه چه پر اللهﷻ باندي د ځانه ځخه درواغ وتړي، چه بي حجته او دليل ځخه ورته شريك ونيسي، يعني د ټولو ځخه لوي ظلم او ناانصافي داده چه بل کوم مخلوق ددی لوي خالق شريك وګرځوو بيا پاك اللهﷻ ته دداسي خبرو نسبت وکړه سي چه دالوهيت د شان او عظمت سره وړ او لايق نه وي، اوکه دغه سړي وويل: په دی شکل سره الله ﷻ بنه عالم او خبر دي چه دی دغسي دي، پداسي حال کښي چه دی درواغ وايي او داسي ندی، کافرسو. ﴿فتاوي الصغری، لحسام الدين بن عبدالعزيز مازه، لوحه ۳۴۰﴾

شارح وايي: شايد په دغه دوو مسئلو کښي فرق سته، اول په نسبت د فعل او دوهم نسبت په قول کښي، مثلاً که سړی ووايي: خدايتعالیﷻ خبر دي چه ته پرما باندي تر خپل پلار ګران او راته محبوب يي، هغه په خپله دغه خبره کښي درواغجن دي، کافرسو. ځکه دده خبره د منلو نده، هغه وخت بيا پروا نلري که ووايي ته پر ما باندي ګران يي په سبب د ځيني وجوهاتو،

په محيط کښي راځي: که يو سړی ووايي: خدايﷻ خبر دي، چه زه دی تر اوسه په دوعاء کښي يا دوم، ځيني وايي: چه کافرکيږي، که يي د خبرو ځخه مراد او مقصد دوام او هميشه توب وي يعني هرکله دوعاء درته کوم، ځکه دا خبره د حقيقت

څخه لیري ده او ممکنه نده، چه څوك دي داسي وکړاي سي پداسي حال کښي ده پر خدایتعالیﷻ باندي درواغ وويل، اوکه یي په خپلو خبرو کښي مراد صرف مبالغه کول وي بیا نه کافر کیږي، که داسي ووایي چه اکثر الاوقات دی په دوعاء کښي یادوم،

که چا وويل: هغه فلانکی یهودي یا نصراني یا مجوسي یا داسي نور یا مسلمان ندی، که دغه سړی په راتلونکي کښي دغه کارونه اوافعال وکړل، زموږپه نزد پرده باندي یمین ﴿قسم﴾ دی، دا مسئله د یمین خومعلومه ده و هرچاته چه و تشریح و تفصیل ته یي دلته ضرورت نه لیدل کیږي، اوکه یو بیعقل او احمق راغلي ویل زه کافرکیږم، کافرسو که څه هم دی نه کافر کیدی، اوکه یي په خپلو خبرو کي کوم شرط ووایه بیا نه کافرکیږي، او ورباندي فقط کفاره د یمین سته وبس نه بل شی که یي قصد ددغو خبرو څخه مبالغه وه، او غوښتل یي په خپلو دغو خبرو د بدي مخه ونیسي، اوکه یي په دغو تیرو الفاظو سره قسم واخستي، نه کافر کیږي، بلکي درواغجن کاذب دي، او کفاره هم ورباندي نسته بلکي ﴿غموس﴾ دی یعني غوټه سوي په اور کښي ځکه دداسي افعالو کونکي مرتکب د گناه کبیره دی، د کبیره گناهونو مرتکب ته غموس وایي،

که چا وویل: په خداي ﷻ قسم، یامي دي ستا په روح قسم وي یا مي دي ستا په سر قسم وي، ځیني علماء وایي: کافر کیږي، ځکه داسي کارونه عطف کوي یې پر غیر الله ﷻ باندي، یایي د خدایتعالی ﷻ سره بل څوك په تعظیم کښي شریك کړي،

که چاوویل: په خداي او ستا د پښو په خاورو دي زما قسم وي په نزد د ټولو علماؤ کافرسو، په اوله مسئله کښي د خداي ﷻ سره په عزت او تعظیم کښي شریك ونیوي او په دغه دوهمه مسئله کښي د خداي ﷻ اهانت او سپکاوی وکړي، شان د رب الخالق یې د خاورو سره د پښو د مخلوق برابر کړي،

﴿اَلْعِیَاذُ بِاللهِ مِنَ الْکُفْرِ اَعْلَمُ وَمَالَمْ اَعْلَمُ﴾

په محیط کښي راځي: علی الرازي وایي: زه د هغه چاپر کفر باندي هم بیریږم چه په خبرو کښي وایي: زما دي په خپل ژوند قسم وي، یاوایي ستا په ژوند دي زما قسم وي، یاداسي نور په ټولو کښي مشابهت او بیره د کفرورباندي سته په دلیل ددی قول د الله ﷻ چه فرمایي: ﴿ فَلاَ تَجْعَلُوا مَعَ اللهِ اَنْدَاداً﴾ سورة البقره ایت ۲۲، ترجمه: خبردار، د الله تعالی ﷻ سره شریکان مه نیسي حال داچه تاسي پوهیږي چه الله تعالی ﷻ شریك نلري،

ابن جریر الطبري وایي: انداد جمع د، ند، ده، او ند وایي و مِثل او عدل ته، یعني هر هغه شی ته چه نظیر او شبیه ولري

وهغه ته ﴿اند﴾ وايي د ابن عباس او ابن مسعود او نورو اصحابوڅخه د رسول الله ﷺ روايت دي، او وايي: ﴿ فَلاَ تَجْعَلُوا لِلّه اَنْدَادًا ﴾ يعني د خداي ﷻ سره شريكان مه نيسى داسي کسان چه د خدايتعالى ﷻ نافرماني کوي او گناهونه کوي د خداي ﷻ سره مه شريکوي او نه هم خداي شريك لرى او نه هم ځوك دده مثل سته په هيڅ شي کښي،بلکي واحداولاشريك دى،په دى موضوع کښي دا حديث درسول الله ﷺ هم دليل لروچه فرمايي،﴿ مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللهِ فَقَدْ اَشْرَكَ﴾ الحديث ،كه چا بيله خداي تعالي ﷻ څخه په بل چاسره قسم واخستي په تحقيق هغه دخداي ﷻ سره شريك ونيوي،حديث ترميذي روايت کړي دي په خپلو سننوکښي ج،۳ ص ۴۵ وليکن كه چيري د قسم اخستونکي مجردي دځان يا دمخاطب تعظيم کول يي مقصد او هدف وي نه برابري او شريك نيول دخداي ﷻ سره بيا ورباندي دکفر حکم نه سو کولای ،تر دى قول لاندي ټول هغه کسان راځي چي په نبي سره يا په روح دنبي سره يا وايي زما دي په ژوند دنبي سره قسم وي يا په كعبه سره قسم اخلي دا ټول تر دغه حکم لاندي راځي،خو بيا هم په ديکښي دعلماؤ كرامو اختلاف سته هر هغه ځوك چه په غير الله سره قسم اخلي ،ځينو علماؤ بيخي منعه ورڅخه فرمايلي ده ،او ځينو مکروه بلليده ،

ابن الرشد د ځينو جيدو علماؤ د خولی څخه ذکر کوي، چه قسم اخستنل په هر معظم شي سره په شرع کښي روا او جايز دي، او شيخ الاسلام ابن تيميه د ټولو په اتفاق سره وايي چه په هيڅ مخلوق سره قسم اخستنل جايز نه دي، لکه کعبه او داسي نور شيان.

﴿ بداية المجتهد﴾ ج ۱ ض ۴۰۷، الوحية الکبری، ص ۵۷، ﴿فتح الباري﴾ د ابن حجرالعسقلاني، ج ۱۱ ص ۳۲۱،

که چا وويل: لکه د ټول عالم خلق چه وايي اونه پوهيږي، نوزه هم وايم چه دغه بد دي، يعني خبره يي پته کړل، نو يمين ورباندي نسته، ځکه ده خپله خبره په الله ﷻ پوري منعقده نکړل، جمهور علماء وايي: چه يمين نسته، يانه منعقد کيږي په مخلوق پوري، په خلاف د حنابله وو، دوي وايي قسم په رسول اللهﷺ سره هم يمين دي او موجب د کفاري گرځي، ﴿المغنی لابن قدامه﴾ ج ۱ ص ۷۲۱، او کتاب د﴿ من يکفر ولم يشعر﴾ د ابن قطلوبغا، لوحه ۱۷،کښي راځي که چا قسم واخستي په غير الله سره، شرك يي وکړي په خداي تعالیﷻ سره په ښکاره توگه يا مشابه سو، دکفارو او مشرکانو سره،

ابن مسعود وايي: ماته په غير الله سره قسم اخستل سخت او بد دي ترهغه چاچي په خدايتعالیﷻ سره د درواغو قسمونه اخلي، يابه دده داسي مقصد وي چه زما هغه سړی خوښ دي

چه په خدایتعالیﷻ سره د درواغو قسمونه اخلي تر هغه چاچه په غیر الله سره قسم اخلي،
زه وایم چه دا خبره صریحه او ښکاره ده چه په غیر الله سره قسم اخستونکي نه کافر کیږي،
په فتاوي الصغری کښي راځي: که چا و چاته وویل په فارسي ژبه سره چه زما خداي لا په ما عالم نه وو، ددی خبري څخه یي مراد معنی وه کافر سو، ځکه الله ﷻ په هر وخت کښي د انسان په حال باندي خبر دی باید د اللهﷻ علم مربوط په یوه زمانه سره نه سي،
یایي داسي وویل: ﴿برای خدا این چیز یا این کار بکنید﴾ که یي مقصد او مفهوم ظاهري معنی واخلو سړی کافر کیږي، ځکه خدایتعالیﷻ زموږ و هیڅ شي ته احتیاج او ضرورت نلری، بلکي موږ ورته احتیاج یو، اوکه دده د خبري مطلب داوي چه ﴿یارب﴾ زما سره داو دا وکړه بیا پروا نلري، لکه څنګه چه شیخ عبید الله بن عطاء بن محمد الافغاني او شیخ عبد الله جمعه البلوچي چه فارسي الاصل دي ددی خبري تاویل دغسي کړیدي، کله چه ددوي سره په مدینه منوره کښي مصاحبه وسول په تاریخ ﴿ ۱۴۱۹\۵\۱۰﴾ کښي

﴿ابو القاسم په ظهيريه﴾ كښې وايي په اتفاق د ډيرو علماؤ چه سړی په معنی سره کافر کيږي، پوهيږي اوكه نه پوهيږي او قصد يي وي او که نه وي،

شارح وايي: داخبره مشكله ده، ځکه که يو سړی يوه عجمي خبره واوري، او په معنی يي نه پوهيږي دی يي هم د عجمو په شکل ددوي په مقتضی سره استعمال کړي دغه خبره، بيا څنګه سړی په کافر کيږي، حال دا چه دده قصد خو دانه دي لکه څنګه چه ددوي تر خولو راوزي دا خبره هغه سي ده هم ده دوي په شاني وکړل،

وروسته په﴿ منهاج المصلين﴾ كښې مادغه مسائل وليدل چه وايي: که جاهل يوه د کفر خبره وکړل او نه وو خبر چه دا کفر دي، ځيني علماء وايي چه نه کافر کيږي د جهل او ناپوهي په خاطر يي بايد معذوره وبولو، او ځيني نور علماء يي کافر بولي، داهغه وخت که يي د کفر خبره وکړل او نه پوهيدي چه داد کفر خبره ده، خو بيا يي هم اختياراً دغه خبره وکړل، د عامه علماؤ په نزد کافر دي، ځکه دوي وايي چه جهل او ناپوهي عذر نه ده، په خلاف د ځينو چه هغه جهل عذر بولي،

﴿ مصطلاحات فقهاء الحنفيه﴾ ص ۳۳۶،

که چا دا عقيده وه چه حرام حلال دي، يايي په زړه کښې دغه خيال وو چه حرام حلال دي، کافر کيږي، مګر که يي وحرامو

شيانو ته ويل چه دا حلال دي چه خپلو شيانو ته رواج ورکړي، او خلق يي ورڅخه رانيسي، يا يي دغه حکم په خاطر د جهل او نا پوهي وکړي بيا نه کافرکيږي، ﴿ فتاوي قاضی خان﴾ ج ۴ ص ۴۶۹، فتاوي تتارخانيه، ج ۵ ص ۴۵۲،

صاحب دمضمراتوچه هغه﴿يوسف بن عمربن يوسف الكادوري﴾ دي او د حنيفي علماؤ څخه دی، داسي نقل کوي وايي که په مسئله کښي وجوهات وه بيا کفر واجبوي، او يو دليل مانع د تکفير نه گرځي، نو مفتي ته ښايي چه هغه خواته مايله سي چه په هغه کښي منع د تکفير وي ددی دپاره چه بايد پر مسلمان باندي هميشه د ښو گمان وکړه سي، وروسته که د ويونکي په نيت کښي دا وي چه په هغه سره منع د تکفير وکړه سي نو بيا مسلمان دی، که څه هم په نيت کښي يي هغه دليل وي چه په هغه سره کفر واجبيږي، په دی وقت کښي د مفتي فتوی څه فايده نلري بايد توبه وکاږي، او د خپل نيت او خبرو څخه وگرځي او د خپلي ښځي سره نکاح نوي ا وتجديد کړي، ﴿خلاصة الفتاوي﴾ لوحه ۳۵۴، او﴿ فتاوي تتارخانيه﴾، ج ۵ ص ۴۵۸، ﴿ بحر الرايق﴾ ج ۵ ص ۱۳۴،

که چا د نامه په اخير کي حرف ﴿ك﴾ وموښلاوه يعني ويي ويل عبدالله ك يا عبدالعزيزك، چه په پښتو يي مطلب داسي کيږي ستا عبدالله يا ستا عبدالعزيز، يعني دغه نوم يي د اسماؤ سره

د الله تعالیﷻ ومبتلاوه په قصد سره کفر دي، څکه دغسي تلفظ کول دپاره د تصغیر دي چه په موضوع کښي په دغه شکل سره ګنجایش د تحقیرپکښي سته، لیکن که یي په دغه موښلولو سره مراد تصغیر او تحقیر نه وي بیا نه کافر کیږي، څکه دده مقصد داوي چه ستا بنده ، دا هغه وخت که دغه ویونکی عالم وی او مقصد یي داوی چه ستا بنده، او که جاهل وو نه پوهیدي چه زه څه وایم اونه یي هم مقصد کفر کول وي، بیا نه سو ویلاي چه کفر یي وکړي،

اودا امکان او احتمال سته چه دغه حرف ﴿ك﴾ یاپه پښتو کي د ستا لفظ یي د خطا او لغوي د معنی په خاطر ویلي وي،

امام الفضلي د علی څخه پوښتنه وکړل په باره کښي د جواز د هغو رواجو چه په پخوا زمانو کښي خلقو به داسي کارونه کول چه حنیفي فقهاؤ یي د کولو جواز ورکړیدي، لکه دپسونو حلالول د راتلونکي مسافر په مخ کښي یا د حاجیانو او غازیانو په مخ کښي به یي حلالول، دغو ته یي د حاجیانو نوروز وایه او داسي نور اصطلاحات او رواجونه هم وه چه تراوسه هم یي څیني جاهلان کوي نو جناب علي ورته وفرمایل: داټوله لهوه او لعب دي او کول یي حرام دي، اوکه چا دیوه انسان د تلو یا راتلو په وقت کښي د هغه و مخته پسه حلال کړي داد جوازاتو څخه ده یعني جایزه ده خو ﴿فتاوي

قاضي خان﴾ ج ۴ ص ۴۲۹، وايي دغه ټوله لهوه او لعب دي کفر نه دي،

په محيط کښې راځي: که چا دغه تير سوي شيان د مثال په توګه لکه حلالول د پسه يي ديوه راتلونکي په مخکښې بيله بسم الله ويلو سره وکړل يايي د حلالولو په وخت کښې د راتلونکی نوم هم ورسره شريك کړي، په دغه حالاتو کښې وجوهات د کفر ليدل کيږي ليکن بيله دغه څخه هيڅ وجه دکفر نه پکښې ليدل کيږي په دغه مسئله يا قضيه کښې،

په ظهيريه کښې راځي، که پاچا عطسه وکړل يعني ﴿وی تره چل﴾ يوه سړي ورته وويل: يرحمك الله، هغه بل سړي ورته وويل: سړي پاچا ته داسي نه وايي: هغه بل سړی کافر سو، که يي د خپلو خبرو څخه مراد او مقصد داوو، چه دا شرعاً نده روا، اوکه يي مراد صرف اصطلاح او عرف وي، يعني سړی وباچاته داسي نه وايي، بيا باك نسته، ﴿فتاوي الظهيريه، لوحه ۱۳۵﴾ او ﴿خلاصة الفتاوی لوحه ۳۵۷﴾

که چاوچانه وويل: ته زما بادار يي ته مي سلطان يي، هغه بل ويل سړی و پاچا ته داسي نه وايي، يا چا ويوه ظالم او جابر ته وويل: ته زما بادار او ﴿آله﴾ يي يا يي ورته وويل: يا باداره يا ته زما اختيار لري د هرڅه زما مرګ او ژوند خو ستا په لاس دی، کافرسو،

﴿خلاصه﴾ د ﴿طاهر بن احمد البخاري، لوحه ۳۵۷﴾ او ﴿زبدة الفتاوى﴾ د ﴿محمد بن يوسف القرماني، لوحه ۳۷۹﴾

شارح وايي: ده چه دا قضيه په جابره او ظالم پوري مربوطه کړيده، يعني که سړي و ظالم او جابر ته داسي ووايي: کافر کيږي، نو وغير خلقو ته ويل خو بيخي سړى کافر کوي، چه په داسي الفاظو يي ياد کړي، يا خطاب ورته وکړي،لکه ځيني خلق نن صباو پير ياوسيدته وايي باداره ته زماباداريي،

که چا ومخلوق ته وويل: يا قدوس، يا رحمن، يا قيوم، ياپه نورو داسي نومو سره د خالق يي ياد کړي، کافر سو،﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب کښي﴿من يکفر ولم يشعر﴾،

شيخ محمد عبد الوهاب ددغي موضوع طرف نيولي دي، دى وايي تغير او بدلون دنامه په خاطر د احترام دالله تعالیﷻ جايز او روا دي،

او شارح شيخ سليمان بن عبدالله وايي دپاره د احترام او تعظيم ښه به داوي چه د اوله سره ځخه پر خپلو اولادو باندي داسي نومونه کښي نږدو، چه نوم يي عبدالقيوم وي خلق ورته قيوم وايي، او داسي نور خصوصاً داسي نومونه چه مخصوص په الله تعالیﷻ سره وي لکه عبدالرحمن اونورداسي، ﴿تيسير العزيز الحميد، ص ۶۱۴﴾

ابو داود په خپلو سننو کښي دهاني څخه هغه د رسول الله ﷺ د یوه حدیث روایت کړیدي، هغه وایي: ﴿ اِنَّهُ لَمَّاجَاءَ وَفْدًا اِلَی رَسُوْلِ اللهِ مَعَ قَوْمِهٖ سَمِعَهُمْ یَکْنُوْنَهُ، بِاَبِي الْحَکَمْ، فَدَعَاءِ رسول الله ﷺ فَقَالَ اِنَّ اللهَ هُوَ الْحَکَمْ وَاِلَیْهِ الْحُکْمْ، فَلَمْ تَکُوْنِيْ اَبَاالْحُکَمَ، فَقَالَ قَوْمِيْ اخْتَلَفُوا فِيْ شَئٍ فَحَکَمْتُ بَیْنَهُمْ فَرَضٰی کِلاَ الْفَرِیْقَیْنَ فَقَالَ رَسُوْلَ اللهِ عَلَیْهِ السَّلاَمْ مَا اَحْسَنَ هٰذَافَمَالَکَ مِنَ الْوَلَد قَالَ لِيْ شَرِیْحٌ، مُسْلِمْ، و عبدالله، قَالَ فَمَنْ اَکْبُرُهُمْ قُلْتَ شَرِیْحَ قَالَ فَاَنْتَ ابو شَرِیْحَ ﴾ الحدیث صححه البانی په خپل کتاب سنن ابو داودکښي، ج ۳ ص ۹۳۶، اوس د حدیث ژباړه ولولی، یو هیئت یو وخت رسول الله ﷺ ته راغلي، چه ځیني خلق نورهم ورسره وه چه یوه پر ځان نوم د اَبِيْ الحکم ایښي وو، رسول الله ﷺ دغه سړی راوغوښتي ورته ویي ویل هر حکم خو دالله ﷻ دي او هغه حاکم دی او هر حکم ده لره دی، ته باید ځانته اباالحکم ونه وایي، هغه سړی وویل: کله چه زموږ د قوم ترمیان څه اختلاف پیداسي نوزه ددغو دوو ډلو ترمیان صلح کوم او سره خوشحاله کوم یي، رسول الله ﷺ ورته وویل: دا څومره ښه خبره ده چه ته د خلقو تر میان صلح او جوړه کوي بیایي ورته وویل: ته زامن نلری؟ هغه سړي وویل لرم یې، دیوه نوم شریح د بل نوم مسلم د بل نوم عبدالله دی، بیا رسول الله ﷺ ورته وویل: کوم یو مشر دی؟ هغه وویل:

شریح مشر دی، نو رسول اللهﷺ ورته وویل: بس ستا نوم ابو شریح دی ددغه لوړ حدیث څخه دا هم راته معلومه سول، که چا و مخلوق ته وویل: یا عزیز، یا داسي نور کافر کیږي، مګر هغه وخت نه کافر کیږي که یي مراد لغوي معنی وي نه خصوصي معنی چه په دغه پوري خاص کړه سویده، خوُ د احتیاط په خاطر باید سړی و عبدالعزیز ته عزیز ونه وایي او عبدالرحمن ته رحمن ونه وایي او داسي نور، او خپل اولادونه په داسي نومو سره چه په ښکاره کفر دي مسمي نه کړو، لکه عبدالنبي او عبد الرسول او داسي نور، مګر که یي مراد د عبد څخه غلام او مربي وي، یا یي عبد مملوك مراد وي بیاْ باك نسته، خو زه وایم اوس چه د جهل پله درنه ده او هیچا سره دا علم نسته چه زه څه وایم، نو حتماً و ډیر احتیاط ته ضرورت سته،

محیط په باب الواقعات کښي راوړیدي چه ﴿شیخ ابو العباس احمد بن محمد بن عمر المعروف﴾ په ناطفي سره وایي: که یو مسلمان په دار الحرب کښي ونیول سو، که د هغه ځای خلقو ورته وویل: چه زموږ پاچا ته سجده وکړه، اوکه نه وژنو دی، نو ښه به داوي چه سجده ونکړي ځکه دغه ښکاره صوري کفر دي، مسلمان باید صوري کفر ونکړي، اوکه ده ته دغه کار ډیر بد او مکروه معلومیدي او بله هیڅ چاره هم نه وه، او دده د

عسکرو څخه ډیر بد هم راتله، نه دپاچا څخه بیا دی د خلاصون په وجه سجده وکړي، که څه هم په دی موضوع کښي خلاف موجود دی، چه انشاء الله ژر به درته ذکر او یاد کړه سي، هغه داسي،
که چا و پاچا ته په نیت د عبادت سجده وکړل، یاپه فکر د عبادت هم نه وي او سجده ورته وکړي کافر سو،
په خلاصه کښي راځي: که چا وپاچا یا امیر یا پیر و شیخ و مرشد ته سجده وکړل او په دغه سجده سره دده ئا مراد وي چه دده داسي تعظیم وکړي لکه څوك چه د الله تعالی تعظیم کوي، کافر سو. اوکه یي مراد تحیه وي ځیني علماء وایي چه نه کافر کیږي، ﴿ ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب کښي ﴿ من یکفر ولم یشعر﴾ لوحه ١٨، او ﴿ زبدة الفتاوی، د محمد بن یوسف القرماني﴾ لوحه ٣٨٠، او ﴿مسائل البدریه﴾ للعیني لوحه ٣٣٥، شارح علي قاري وایي: دا خبره ښکاره ده چه نه کافر کیږي، ځکه هیڅ امکان نلري چه یو عاقل دي دغو اشخاصو ته د خداي په شاني تعظیم وکړي،
او په ظهیریه کښي ځیني علماء وایي چه مطلقا کافر کیږي هر هغه څوك چه وهغه چاته سجده وکړي چه دده ورڅخه بد راځي او اکراه ور څخه کوي، ددي څخه داهم معلومه سول چه پاچا ته هم سجده کول مکروه ده په نزد د امام ابو حنیفه، او هر

قادرته چه د سجده کونکی پر وژلو قادر وي سجده کول مکروه ده، په نزد د ابي یوسف او محمد، او که یي منعه کولای سوای په یوه طریقه د طریقو دی د سجده کولو څخه ځان وژغوري، او بیله اکراه او جبر څخه وهر چاته سجده کول کفر دی بیله خلاف څخه، مگر د مځکي مچول و سجدی ته نژدي ده، د تندي او بارخو اینبودل تر سجدي کولو لابد دی، نسبت مځکي موچولو ته،

شارح وایي د تندي اینبودل تر بارخو بد دي، کفر په سجده کولو سره تر هغو نه واجبیږي تر څو تندی پر مځکي باندي کښي نه ښودل سي، ځکه داسي سجده کول خاص دپاره د خدایتعالیﷻ وي، ﴿فتاوي البزازیه، ج ۶ ص ۳۴۲﴾ او ﴿بحر الرایق﴾ په ج ۵ ص ۱۳۴، کښي وایي،

وهر جابر و ظالم ته سجده کول کفر دي که د عبادت دپاره وي او که دپاره د تعظیم اویا دپاره د تحیه وي، په هر صورت کښي ومخلوق ته سجده کول کفر دی، خو اکثریت د علماو پر دی باندي دي چه د تحیه په سجده کولو سره کفر نه واجبیږي،

د لاسو مچول د شرعي له نظره څخه که سړی ژوندی وي شرعاً حق د اکرام او عزت لري که درلودنکي د شرعي علم وي داسي علم چه په هغه سره عمل هم په کونکی وي او د شرعي شرف او سیادت درلودنکي هم وي، اود لاس موچونکي به داهیله وي

چه خدایتعالی ﷻ به اجر او ثواب راکړي، لکه زید بن ثابت چه د ابن عباس ﷠ لاسونه ورمچ کړل، روایت دی د عبدالبر څخه دی وایي ماپه خپله د سر په سترګو شعبي ولیدي چه زید بن ثابت د جنازی لمونځ وکړي، وروسته د ابن عباس د آس و خوا ته ور نژدي سو او د هغه د لاس جلو یي ونیوي، زید ورته وویل: پریږده د رسول الله ﷺ اکا، ابن عباس وویل: چه موږ هم د علماؤ دغسي عزت او احترام کاوه. په بل حدیث کښي راغلي دی چه زید اول د ابن عباس لاسونه ور مچ کړل بیا یي وهغه ته د هغه د آس جلو ونیوي اوپه ډیر عزت او احترام یې پر آس باندي سپور کړي، بیا زید وویل: موږ دغه رنګه رسول الله ﷺ امر کړي یو چه د اهل بیتو او د اسلام د علماؤ کرامو عزت وکړو، ﴿ جامع بیان العلم وفضله﴾ ج ۱ ص ۵۱۴، همدارنګه په بل روایت کښي د لاسو مچولو څخه منعه کړه سویده، چه تفصل یي ترمیذي په خپلو سننو کښي راوړیدي، په جلد ۴ ص ۱۷۲، کښي روایت کوي د انس بن مالك څخه وایي، چه موږ و رسول الله ﷺ ته وویل: که زموږ ورور یا دوست دیوه لیري ځاي څخه راسي ومخي ته یي د ښه راغلي غزل زمزمه کړو؟ و یل، یا، بیا مو وویل: په غیږ کي ونیسو او مچ یي کړو؟ بیا یي وویل: یا موږ ورته وویل د لاس روغبړ ورسره وکړو؟ رسول الله ﷺ راته وویل: هو، د لاس روغبړ ور

سره وکړي، الحديث، ترميذي وايي دا حديث حسن دي، الباني هم دا حديث صحيح او حسن وباله صحيح الترميذي، ج ۲ ص ۳۵۲، بياهم د لاسو په مچولو کښي اختلاف د علماؤ تر ميان موجود دي. چه په دي باره کښي ابن حجر ډير احاديث او روايات را نقل کړيدی، چه په ځينو کښي ونه مچولو ته د لاسو يي اشاره کړيده، امام مالك وايي بايد لاسونه مچ نکړه سي بلکي د لاسو مچول يي مکروه بللي دی، او ځينو نورو بيا د لاسود مچول اجازه ورکړي ده، امام النووي وايي: د هغه چا لاسونه دي مچ کړه سي چه ښه زاهد او تقوی داره وي او د اصلاح او علم خاوند وي سره د عمله په خپل علم سره او هم د ښه شرف او اصلاح خاوند وي په ديني کارو کښي دداسي خلقو لاسونه مچول مستحب او ښه کار دی او غيرله دغه څخه مکروه دی چه څوك د چا لاسونه مچوي، او د دنيا داره يا د جاه او رتبی والا لاسونه مچول ډير سخت مکروه دی. او ابو «اسعيد المتولي» وايي چه د لاسو مچول روا او جايز ندي، «فتح الباري، ج ۱۱ ص ۵۶-۵۷، او «شارح الصغير لدرالدير» ج ۷ ص ۵۳۹،

ليکن صوفيانو ددې لاري دروازه په ډيره پراخي او افراط سره خلاصه کړل تر اندازي زيات يي د خپلو پيرانو او مرشدانو د تعظيم او تکريم په باره کښي مبالغه وکړل، حتی په هر وقت

کښبي به يي د خپل شيخ لاسونه مچول، په ډير تعظيم به د خپل شيخ تر شا تلل، دپاره د برکت په هرکار کښبي د خپل پيرڅخه خير او برکت غواړي تردي اندازي چه ورته يي د خدائي درجه ورکوله، ددي خلقو په باره کښبي خبري د حده زياتي وجود لري، هر مريد که به د عادي کار دپاره ووتي چه بيرته به راغلي بيرته به يي حتماً د مرشد لاسونه ورمچول، د مرشد په مخکښبي به د مريي په شاني کښينستل او هيڅ خبره به يي نکول تابه ويل چه مړی د غسال ومخته پروت دي او هيڅ خپله اراده او اختيار نلري،

امام الشاطبي د حلاج د مريدانو داسي حکايت کوي، دوي د تبرك په خاطر له حده زيات مبالغه او غلو کوله، حتی دده بولي به يي په خپلو مخونو او بدن پوري موښلي دپاره د تبرك، او دده قاذورات به يي دوده وله، حتی د خدايي درجه به يي ورکوله، حال داچي لوئي خاص الله ﷻ لره ده، ددي بيري په خاطر چه غلو او شرك زيات نه سي او دروازه يي د هر چا پر مخ باندي خلاصه نه سي بايد له مخکي څخه دا دروازه وتړله سي، ترڅو يوه خطرناکه فتنه ورڅخه جوړه نسي، او دين ټول او خاص دپاره د الله ﷻ سي، لکه څنګه چه حضرت عمر بن خطاب هغه درخته د بيخه وايستله کومه چه تر هغی لاندي رسول اللهﷺ د اصحابو سره بيعت کړي وو، چه هغي ته شجرة

بيعة الرضوان وايي، ﴿ حافض ابن حجر﴾ وايي ددغه درختي
ځاي غير معروف وو او پکښي اختلاف وو، وروسته يي د
هغي ځاي داوسيدونکي ابن سعد څخه د صحيحو اسنادو پر
اساس ځاي پيدا کړي، د نافع څخه روايت دي چه عمر ابن
خطاب ته يي خبر ورکړي، چه دغي درختي ته به خلق راتلل
اودلته به يي لمنځونه کول، او دوعاوي به يي کولي، وروسته
حضرت عمر امر وکړي او هغه درخته يي د بيخه وکښل، او په
دې شکل سره يي د شرك او کفران دروازه وتړله، والله اعلم،
﴿ اعتصام الشاطبي﴾ وګوري ج ۱ ص ۴۸۴، که چا د يوه دنيا
داره او غني اوسرمايه داره سړي لاسونه د هغه د دنيا يا د هغه
د منصب په خاطر ور مچ کړل، دغه سړي فسق وکړي، اوکه يي
ديوه پخواني احسان او نيکي په خاطر ور مچ کړل، يايي يو
وخت دی د يوه ظالم د ظلم څخه خلاص کړی وي، نن يي دی
لاسونه ورمچ کړي، دا بيا مکروه دي نه فسق، ددی خبري
دپاره د دليل په ډول دا حديث وړاندي کوو، ﴿ مَنْ تَوَاضَعَ
لِغَنِيٍ لِاَجْلِ غِنَاهُ ذَهَبَ ثُلُثاً دِيْنِه﴾ حديث د بهيقي دي چه اسناد
يي ضعيف دي، ﴿ شعب الايمان، ج ۷ ص ۳۱۲، ترجمه، د
حديث: که چا د يوه غنی په مقابل کښي دهغه د غنا په خاطر
تواضع وکړل دريمه برخه د دين يي ولاړه، ځکه سامان ﴿آلة﴾ د
عبادت زړه اوژبه او جوارح دي او د غنی د تعظيم دپاره بايد

دغه شیان استعمال کړه سي چه ژبه او زړه او بدن دي، او هم دا باید ووایم، چه د تعظیم تصور هم نکیږي بیله زړه څخه، باید په زړه سره وکړه سي که ددغه دنیا داره تعظیم په زړه سره او ژبه او په جوارح باطني سره وکړه سي، ټوله دین یي دلاسه څخه وزي، نه داسي لکه بهیقي چه دغه حدیث د ضعیف اسنادو پربنیاد باندي وړاندي کړیدي،

خدایتعالیﷻ پر هغه فقیر باندي لعنت وایي چه د غني سره تواضع کوي په خاطر د هغه د مال او دهغه درتبې، او که چا دغسي وکړل دریمه برخه ددین یي دلاسه ورکړل، «الفردوس بما ثور الخطاب للدیلمي بن شجاع الشروریة بن شهر دار» ج ۲ ص ۸،

په خلاصه او فتاوي الصغری کښي، امام ابو منصور الماتریدي، ویلي دي، که چا وپاچا ته وویل: ته زموږ د زماني عادل یي، کافرسو. ځکه دده په ظلم کولو کښي شك نسته حتما به یوه ورځ ورڅخه جور او ظلم کیږي، او ظلم او جور حرام دي هر چاچه وهغه شي ته حلال یا عادل وویل چه هغه په یقین سره حرام وي په تحقیق سره کافرسو، ځکه ده وغوښتل چه دی تر حق عادل وبولي، لکه چه الله تعالیﷻ په قرآن کریم کښي فرمایي: «ثُمَّ الذِيْنَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ» سورة الانعام د اول آیت ټوټه، ترجمه: بیا هم هغه کسان چه کافران سوي دي په

رب خپل سره برابره وي نور شیان په عبادت کښي یا د الله تعالیٰ ﷻ د عبادت څخه د غیرالله وعبادت ته مایلیږي، یا د غیرالله و عبادت ته زړه ښه کوي. تفسیر ددي آیت شریف داسي کوی، ﴿ثُمَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا﴾ وروسته بیا دوي کافران سول د خداي سره شریکان او مثالونه یي وګرځول حال دا چي الله تعالیٰ ﷻ دغه ټول شیان الله تعالیٰ ﷻ پیدا کړی او خلق کړي دي راسي د لوړ آیت تفسیر وکړو، مجوسیانو دنیاته دوه خدایان درولي یو ﴿ یزدان﴾ چه د خیر خالق یي بولي او دوهم خداي ﴿ اهریمن ﴾ بولي وایي دا د شر او بدي خداي دي، او دواړه به یي د نور او ظلمت په نامه سره یاده ول،

د هندوستان مشریکان په دري دیرش کروړو خدایانو سره قایله دي، چه هر یو خپل بت خداي بولي د ﴿اریه سماج﴾ ډله سره ددي چه د توحید ادعاء کوي، دوي وایي ﴿ماده﴾ او ﴿روح﴾ هم لکه خداي غوندي غیر مخلوق او ازلي دي او الله ﷻ د تکوین او تخلیق اوپه څه نورو صفاتو کښي دي، دواړوته یي ﴿ نَسْتَغْفِرُ الله﴾ محتاج بولي، عیسایان د پلار او زوي د توازن او تناسب له پاره باالاخره د دریو څخه یواویوله دریو څخه مشهوره عقیده غوره کړه.لکه چه وایي﴿ ثَالِثُ ثَلاَثَةٍ﴾ او یهودانو د الله تعالیٰ ﷻ دپاره داسي صفات تجویز کړل، یو عادي انسان هم نه یوازي ﴿ اَلْعَیَاذُ بِالله﴾ دهغه سره برابري

دغه شیان استعمال کړه سي چه ژبه او زړه او بدن دي، او هم دا باید ووایم، چه د تعظیم تصور هم نکیږي بیله زړه څخه، باید په زړه سره وکړه سي که ددغه دنیا داره تعظیم په زړه سره او ژبه اوپه جوارح باطني سره وکړه سي، ټوله دین یي دلاسه څخه وزي، نه داسي لکه بهیقي چه دغه حدیث د ضعیف اسنادوپربنیادباندي وړاندي کړیدي،

خدایتعالیﷻ پر هغه فقیر باندي لعنت وایي چه د غني سره تواضع کوي په خاطر د هغه د مال او دهغه درتبي، اوکه چا دغسي وکړل دریمه برخه ددین یي دلاسه ورکړل، « الفردوس بما ثور الخطاب للدیلمي بن شجاع الشروریة بن شهر دار» ج ۲ ص ۸،

په خلاصه او فتاوي الصغری کښي، امام ابو منصور الماتریدي، ویلي دي، که چا وپاچا ته وویل: ته زموږ د زماني عادل یي، کافرسو. ځکه دده په ظلم کولو کښي شك نسته حتما به یوه ورځ ورڅخه جور او ظلم کیږي، او ظلم او جور حرام دي هر چاچه وهغه شي ته حلال یا عادل وویل چه هغه په یقین سره حرام وي په تحقیق سره کافرسو، ځکه ده وغوښتل چه دی تر حق عادل وبولي، لکه چه الله تعالیﷻ په قرآن کریم کښي فرمایي: «ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ» سورة الانعام د اول آیت ټوټه، ترجمه: بیا هم هغه کسان چه کافران سوي دي په

رب خپل سره برابره وي نور شیان په عبادت کښي یا د الله تعالیﷻ د عبادت څخه د غیرالله وعبادت ته مایلیږي، یا د غیرالله و عبادت ته زړه ښه کوي. تفسیر ددي آیت شریف داسي کوی، ﴿ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ وروسته بیا دوي کافران سول د خداي سره شریکان او مثالونه یي وګرځول حال دا چي الله تعالیﷻ دغه ټول شیان الله تعالیﷻ پیدا کړی او خلق کړي دي راسي د لوړ آیت تفسیر وکړو، مجوسیانو دنیاته دوه خدایان درولي یو ﴿ یزدان﴾ چه د خیر خالق یي بولي او دوهم خداي ﴿ اهریمن ﴾ بولي وایي دا د شر او بدي خداي دي، او دواړه به یي د نور او ظلمت په نامه سره یاده ول،

د هندوستان مشریکان په دري دیرش کروړو خدایانو سره قایله دي، چه هر یو خپل بت خداي بولي د ﴿اریه سماج﴾ ډله سره ددي چه د توحید ادعاء کوي، دوي وایي ﴿ماده﴾ او ﴿روح﴾ هم لکه خداي غوندي غیر مخلوق او ازلي دي او اللهﷻ د تکوین او تخلیق اوپه څه نورو صفاتو کښي دي، دواړوته یي ﴿ نَسْتَغْفِرُ الله﴾ محتاج بولي، عیسایان د پلار او زوي د توازن او تناسب له پاره باالاخره د دریو څخه یواویوله دریو څخه مشهوره عقیده غوره کړه.لکه چه وایي﴿ ثَالِثُ ثَلاَثَة﴾ او یهودانو د الله تعالیﷻ دپاره داسي صفات تجویز کړل، یو عادي انسان هم نه یوازي ﴿ اَلْعَيَاذُ بِاالله﴾ دهغه سره برابري

کولای سي بلکه ورڅخه بهتره هم کیدای سي، د عربو مشرکانو د خدایانو په تقسیم کښې تردې ځایه پوري خپل سخاوت وښودي چه ښایي ددوي په نزد د غره هره یوه ډبره هم د انسانانو د معبود ګرځیدلو صلاحیت او لیاقت لري، البته، اور، اوبه، لمر، ستوري، درخته، ډبره، حتی هیڅ شی یي پرې نه ښودي او هر یوه موجود ته یي د خدایي څه ناڅه برخه ورکړل او د عبادت او استعانت غوښتلو په وخت کښې به یي دوي د خداي پر ځاي درول، او مرسته او مدد به یي ورڅخه غوښتي، که چا بیا داسي وویل: که دده څخه ظلم کیږي نو عدل هم کوي، که وواییَ ته زموږ د وخت ظالم پاچا او سلطان یي، نو دغه ته بیا عدل نه ویل کیږي، لکه و هغه چاته چه کله ناکله لمونځ کوي وهغه ته لمونځ ګذاره نه سو ویلای، اونه هم هغه چاته متقي ویلاي سو چه یوه ګناه پریږدي او بله کوي، اونه هغه چاته فاسق ویلاي سو چه یو وخت یوه ګناه ورڅخه وکړه سي، ځکه حکم باید پر اغلب باندي وکړه سي، لکه عالم او جاهل، عارف او غافل، بیا دوي وویل: امام محمد وایي: که وهغه چاته د کافر ویل مکروه بولو چه د ډیرو وهلو څخه د بل انسان د بدن یوه عضوه ناکاره او دمیانه څخه یوسي، نو وهغه چاته څنګه کافر ویلاي سو، چه یوه د کفر خبره ورڅخه وکړه سي، او زړه یي د ایمان څخه ډك اوپه ایمانِ خپل باندي

مطمئن وي، اوپه خیال کښي هم دانوي چه داسي خبره دی وکړي چه په هغه سره کافر او دایمان څخه په هغه سره ووزي، امام محمد وایي: بده او مکروه به وي چه پر داسي چاباندي د کفر حکم وکړه سي، لکه څنګه چه الله تعالیﷻ په قرآن کریم کښي فرمایي: ﴿ اِلاَّ مَنْ اُکْرَهَ وَ قَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّ بِالْاِیمَانِ﴾ سورة النحل، آیت ۱۰۶، د ایت د شروع څخه ترجمه داسي ده، هر څوك چه کافر شو پر اللهﷻ باندي وروسته د ایمان راوړلو څخه نوپر ده باندي د اللهﷻ غضب دی، مګر هغه څوك چه زور پر وکړه سي او مجبوراً د کفر کلیمه یي وویله حال دا چي زړه دده آرام نیونکي وي په ایمان سره،

که دچا دا ګمان سو چه په آینده کښي به کافر کیږم په درواغو سره، وروسته یي وویل: دا مازي خبره مي وکړل نه کفر غواړم اونه کافر کیږم، بس په همدغه سره قضاء باید دده په کفر سره حکم وکړي، په دین کښي تر هغه وخته ورته کافر نه ویل کیږي ترڅو پوري قاضي دی او مابنه سره جلا نکړي، ځکه کافرهغه دي چه دی د ښو څخه وبدوته مایله سو، یا دهغه شي څخه وګرځیدي چه دی په راضي وو واکراه ته، اوَدی په راتلونکي کښي د کفر خبري کوي چه هغه غیرالانشاء ده، اوهم ورباندي غیر مکروه دي،

که چاپه رشتیا سره وویل: په اخیره کښې به کافر کیږم، وروسته یې وویل: یا دروا غ وایم،نه کافر کیږم، قاضي دي بیا شاهدی نه مني اونه دی دده دا خبره مني چه مادرواغ ویل. په ښکاره سره دی په خپله مرضی کښې صادق دي خوپه دین کښې نه کافر کیږي ځکه ده لفظ دمحتمل «شاید» استعمال کړیدي،« فتاوي تتارخانیه» لعالم بن العلاء ج ۵ ص ۵۲۷،

که دیوي ښځي میړه په بندیخانه کښې بندي وي او دی وویل: زما میړه مرتد سوي دي ددین اسلام څخه اوزه وربانديطلاقه یم،

که بندي وویل: دی ودغه ته مجبوره کړم چه کفر وکړم، حال داچه زه مکره یم او د کفر څخه مي ډیر بد راځي، په دغه وقت باید د ښځي خبره قبوله او ومنل شي، او د میړه څخه دي شاهدان وغوښتله سي « بدر الدین العینی في المسائل البدریه المنتخبه من الفتاوی الظهیریه» لوحه ۱۳۷، او کتاب د ابن قطلوبغا من یکفر ولم یشعر، لوحه ۱۹،

که یوي ښځي و قاضي ته وویل: چه زما میړه وویل: چه مسیح عليه السلام د خداي زوي دی، که میړه یې وویل: ما قصه ورته کوله چه نصاري داسي وایي، اوکه یې اقرار وکړي چه هو ما دغسي وویل، ماینه ورباندي طلاقه ده په طلاق باین سره، اوکه یې ویل چه نصاري داسي وایي چه مسیح عليه السلام د خداي جل جلاله زوي

دي، دی زما پوره خبره نده اوریدلي اوس پر ماباندي دروغ وایي، په دی وقت کښي باید د میړه خبره سره دیمین ومنله سي، دا هغه وخت که دی وویل: رشتیا به ما پوره خبره په صحیح توګه سره نه وي اوریدلي، بیا دخاوند خبره د منلو وړ ده، محمد بن حسن الشیباني چه د امام ابو حنیفه ﷺ ملګری دی وایي که شاهدانو شاهدي ادا کړل چه موږ واوریدل چه ده دغسي وویل: چه مسیح ﷺ د خدای ﷻ زوي دی، اوبل یي هیڅ ډول خبره نده ورسره ملګري کړي، نو پر قاضي باندي لازمه ده چه دغه میړه او ماینه سره جلا کړي اوبیا ددغه سړي شهادت ونه مني، ﴿ زبدة الفتاوی﴾ دمحمد بن یوسف قرماني لوحه ۳۸۰، اوکتاب د ابن قطلوبغا، من یکفر ولم یشعر، لوحه ۱۹،

## فصل په باره کښي د مرض او مرګ او قیامت

که چا داسي وویل: چه خدای وو او دده سره هیڅ شی نه وو او هم مخکښي دده شی وو، اویا داسي وویل: خدای به وي بل به هیڅ شی نه وي، په دواړو حالاتو کښي کافر کیږي، ځکه دده قول پر دی باندي دلالت کوي چه جنت او دوږخ به هم فناه سي

حال داچه دغه دواړه به باقي وي ابدالابد په دليل سره ددی آيت شريف: ﴿ خَالِدِيْنَ فِيهَا اَبَدًا﴾ سورة البينة د ۸ آيت ترڅه، يعني دوي به همیشه پکښې ؒوي يعني جنتيان په جنت کښي وي او دوږخيان به په دوږخ کښي وي،

قرطبي وايي يعني بيا به مرگ نه وي دوي به همیشه په خپلو ځايو کښي وي، جنت او دوږخ به تل او همیشه وي اهل السنة او جماعة وايي که ددغه څخه منکرسي، کافرکيږي. محلي د ابن الحزم وگوري، ج ۱ ص ۳۰، ﴿ فتح الباري﴾ د حافظ بن الحجر العسقلاني وگوري، ج ۱۱ ص ۴۲۲، او شرح د فقه الاكبر د على قاري، ص ۱۴۶،

که چاوچاته وويل: چه هغه د مرض او ناجوړي څخه خلاص سوی وي اوس دي دا خر وچاته وراستوي، ياد چا يو څوك مړسي بل ورته وايي: روح يي تاته پاته سول مطلب يي ددی خبري څخه داوي چه ستا عمر دده په روح سره ډير سو، ياوهغه چاته چه دی يي عذرته د فاتحي ورغلي دی دده روح کمه سول، خدايتعالىﷻ دي ستا په روح کښي زياتوب راولي، په دغه ټولو حالاتو کښي د کفربيره سته، په دليل ددي قول دالله تعالىﷻ چه فرمايي: ﴿ وَمَا يُعَمَّرُمِنْ مُعَمَّرٍ وَلاَ يَنْقُصُ مِنْ عُمْرِ اِلاَّ فِي كِتَابٍ﴾ سورة الفاطر ايت ۱۱، د کتاب څخه مراد لوح محفوظ دي،

اوس به د آيت ترجمه او تفسير وکړو، (ترجمه) نسي اوږد کيدلای عمر د هيڅ اوږد کړه سوي اونه هيڅ قدر کمولاي سي د عمر څخه ددغه عمر درلودنکي څخه يا د عمر څخه د بل معمر، يعني زياتوب او کمبود ونقصان د عمر بيا نسته، مگر هرڅه چه دی په کتاب محفوظ کښي ليکل سويدي،

بيشکه دغه اوږديدل او لنډيدل د عمر و الله ﷻ ته ډير اسانه دی، يعني د هرچاچه هر قدر عمر وي، هغه په لوح محفوظ کښي ليکل سويدي اوهغه اسباب او وسائل چه د عمر د اوږديدو يا د لنډيدو دي، يادا چه کوم يو به خپل طبيعي عمر ته رسيږي، اوکوم يو به نه رسيږي؟

دغه ټول د الله ﷻ په محيط علم کښي موجود دي، او الله تعالیٰ ﷻ ته پر دغو ټولو جزئياتو باندي احاطه درلودل هيڅ اشکال نلري، او الله ﷻ ته د ټولو ﴿ مَا كَانَ وَمَا يَكُوْنَ﴾ جزيي، کلي او د غيب او شهادت علم دا زله تر ابده اوتر الی ماشاء الله پوري حاصل معلوم او ښکاره دي، نه ښايي چه د الله ﷻ علم او صفات پر خپل ځان باندي قياس کړه سي، حضرت شاه ﷺ فرمايي: هر کار الله ﷻ ته ډير اسانه دي، لکه د انسان پيدا ايښت، او رسونه يي خپل مقدر عمر ته، اوهم داسي وگني داسلام تدريجي پر مخ تگ او ترقي او باالآخره د کفر مغلوبيدل او مقهوريدل،

اوبل دلیل دا قول د الله ﷻ چه فرمایي: ﴿ وَلَنْ يُؤَخِرَاللهُ نَفسًا اِذَا جَاءَ اَجَلُهَا ﴾ سورة المنافقون ایت ۱۱، ترجمه: هیڅکله به الله تعالی ﷻ وروسته نکړي دهیچا څخه مرگ کله چه نیته یي ورسیږي، دا ښایي د منافقانو ددی وینا جواب دي چه دوي به ویل: ﴿ وَلاَ تُنفقوا عَلى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلُ اللهِ ﴾ الایة،وهغه چاته خیرات او صدقات مه ورکوي چه د رسول الله سره ملگري دي، خوښه داده هرڅه چه مو په وس او طاقت پوره وي، هغه ژرترژره همدا اوس وکړي، کنه مرگ او مړینه درته را رسیدونکي ده، نو هغه وخت به بیا افسوس کوي، چه ولي مو هیڅ د الله ﷻ په لاره کښي ورنکړل، څه وخت چه مرگی دشوم او بخیل پر سر باندي راسي، نو هلته دي تمنا او آرزو کوي، چه یو څه ورځي نور د ژوند مهلت راکړه او مرگ مي وځنډوه، ترڅو زه ښه خیراتونه او صدقات ورکړم، اوځان په ښو اعمالو او توبه سره سنبال کړم اوبیابه ستا حضورته راشم خوهلته هیچاته مهلت نه ورکول کیږي، هرچاته هغومره عمر دی څومره چه ورته ټاکل سویدي، دهغه ذ پوره کیدلو څخه وروسته د یوي لحظي دپاره هم په هغه کښي څه ډیل او تاخیر پیښیدونکي نه دي،

﴿تنبیه﴾ د ابن عباس ﷺ څخه روایت چه هغه دا غوښتنه او تمنا د قیامت پر ورځ باندي حمل کوي، او وایي بخیلان به د

قیامت په ورځ کښې داسي آرزو او ارمان کوي چه کاشکي زه بیا د څه مدت له مخي دنیا ته ورشم او هلته ښه خیراتونه وکړم او ښي چاري وکړم او بیا په ښي توبي او اصلاح سره دلته راسم،

که چا د مړي و دوستانو ته وویل: خداي دي ستا روح زیاته او ډیره کړي. دا ګناه او جهل دي اودا مذهب د اهل تناسخینو دي، ﴿فتاوي تتارخانیه، ج ۵ ص ۵۱۱،

همدارنګه وچاته داسي ویل: چه خدایﷻ دي ښه اوږد عمر درکړي او خداي دي همیشه ژوندی لره او داسي نور دا ټوله ګناه ده او جهل و ناپوهي ده،

همدارنګه چاته ویل: چه خدایتعالیﷻدي عمر لنډ او کم کړي، یادي خدايﷻ روح ډیره یا لږ کړه دا ټوله جهالت او ناپوهي ده، ﴿ فتاوي تتارخانیه﴾ ج ۵ ص ۵۱۱، عالم بن علاء پر دغه مسئله باندي یو تعلیق کړیدي، هغه وایي داسي خبري کول جهل او ناپوهي ده، اودا مذهب د اهل تناسخه وو او قدریة وو دي، په نزد د اهل سنت او جماعتو اجل نه لږیږي او نه هم زیاتیږي،

او شیخ الاسلام ابن تیمیه وایي په دوعاء سره عمر اوږدیږي خو علماؤ دا خبره صحیح ندد بللي، امام احمد ته چه به چا

دعمر د اوږيدو دوعاء كوله، ده به ډيره بده ګڼل او ويل به يي دا خبره خلاصه سويده،
بخاري شريف په باب الدعوات کښي راغلي دي، چه رسول اللهﷺ د انس بن مالك وخادمي ته د عمر د اوږديدلو دوعاء كړيده، صحيح البخاري مع الفتح، ج ۱۱ ص ۴۴، ﴿ وَاَخْرَجَهُ فِي الادَبِ الْمفْرَد. حَدَّثَنَا عَارِمْ قَالَ حَدَّثَنَا سَعِيْد ابْنِ زَيْد عَنْ سنان قَالَ حَدَّثَنَا اَنسْ قَال كَانَ النَّبِيْ ﷺ يَدْخل عَلَيْنَا اَهْلُ الْبَيْتَ فَدَخَلَ يومًا فَدَعَا عَلَيْنَا فَقَالَتْ اُمّ سَلِيْم، قَالَ اَللهُمّ اَكْثِرْ مَالُهُ وَوَلَدَهُ وَ اَطلّ حَيَاتَهُ وَ اَغْفرلَهُ ﴾ الادب المفرد، ص ۹۶، دارالكتب العلمية بيروت، دا حديث الباني هم صحيح كړيدي، ترجمه: عارم روايت كوي د سعيد څخه هغه د زيد څخه هغه د سنان څخه هغه وايي انس وويل: چه موږ يوه ورځ په خپل كور کښي وو چه رسول اللهﷺ زموږ كور ته راغلي او ام سليم يي راوغوښتل او دوعاء يي ورته وكړل، الهي مال او دولت وركړه او ډير اولادونه او ژوند يي ور اوږد كړه او الهي بخښنه ورته وكړه،
كه چا وويل: فلانكی مړ سو روح يي وتاته در وسپارله ، كافرسو. څكه ده د خدايتعالیﷻ ددی قول څخه مخالفت وكړي چه فرمايي: ﴿ قُلْ يَتوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتُ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ﴾ سورة السجدة ايت ۱۱،

په ښکاره سره خو دغه سړی درواغجن دي نه کافر، راسي اوس د آیت ترجمه او تفسیر وکړو، ووایه ای محمده دویته قبضوي ارواحونه ستاسي ملائیکه د مرگ چه هغه ﴿عزرایل﴾ دی هغه پر تاسو باندي مقرره کړه سویدي چه ستاسي ارواحونه قبض کړي، بیابه د خپل رب په حضور کښي ودرول سي پس له مرگه څخه دپاره د حساب، حضرت شاه صاحب لیکي تاسي خپل ځانونه یوازي بدن او جسد گڼي چه د خاورو سره به گډوډ سي او بیرته به خاوري سي، حال داچه داسي نده، تاسي په حقیقت کښي روح یاست چه هغه ملائیکي دخپل ځانه سره وړی او بیخي نه فناه کیږي ﴿موضیح﴾ په فتاوي قاضي خان کښي راځي: که چا وویل: فلانکی سړی په خپله نه مري، دغه ویونکي باید پر خپل کفر باندي وبیریږي، ځکه دده د خبرو دا مقصد دي چه دی باید یو څوك ووژني، حال داچه هیڅوك په خپله نه مري خدایتعالیﷻ یي وژني او په واسطه د ملائیکوئي روح قبضوي،

که چا وویل: فلانکی خدایتعالیﷻ تر خپل معین وخت څخه مخکي وواژه کافرسو. ځکه ده د خپل قصد څخه خلاف خبره وکړل ځکه الله تعالیﷻ د هریوه دپاره اجل معین کړیدي، چه هغه نه مخکي کیږي اونه وروسته کیږي،

که چا وويل: خداي ﷻ ته نه ښائيدل چه دايي وژلي واي يايي مړ کړي واي، كافر سو. همدارنگه هغه څوك كافر كيږي چه زوي يابل دوست يي مړسي او دی وايي خدايه ﷻ دادی باید نه وای وژلي ياتاته نه ښائيدل چه زما د زوي روح دي قبض کړله، په ټولو حالاتو کښي كافر كيږي. «فتاوي قاضي خان» ج ۴ ص ۴۶۷-۴۷۰ پوري،

که چا وويل: فلانکی خپل روح بادار ته ورکړل يا فلانکی ته يي ورکړل، او خپله روح يي ورته پاته سول، كافرسو. ځکه هر يوه انسان لره خپل روح وی او مذهب د اهل تناسخ يي كافرنه بولي زبدة الفتاوی لوحه ۳۸۰،

که چا د مړی و قريبانو او دوستانو ته وويل: خدای ﷻ تر تاسو وده ته احتياج درلودي، ځکه يي درڅخه واخستی کافرسو، ځکه الله ﷻ ﴿غَنِي الحَمِيدُ وَالصَّمَدُ﴾ دي وهيچاته اړاو محتاج نه دي، بلکي هرشي وده ته محتاج دي،

که څوك د قيامت څخه يا د جنت او دوږخ يا د ټولو څخه منکر سي يادهغو کتابو څخه منکر سي چه په هغه کښي د بندگانو اعمال نوشته كيږي كافركيږي، داځکه دا ټوله په قرآن او حديث سره په اجماع ده ائمه وو ثابت دي خوداپه خلاف د معتزله وو. اهل سنت او جماعت وايي، جنت او اور دوه دوه جلا مخلوقات دي چه داوله څخه بياتر اوسه موجود دی اوهم

به موجودوي تر اوسه پوري اهل سنت پر خپله عقيده باندي دی، ترڅوپوري د معتزله وو او قدريه وو نابغه پيداسول او ددی خبرو څخه يي انکار وکړي او دوي وايي چه جنت او دوزخ خدايتعالیﷻ د قيامت په ورځ جوړه وي اوپر دغه اساس باندي خپل فاسده شريعت بناء کړي، دوي وايي خدايتعالیﷻ داسي نکوي اونه هم ورته ښايي چه داسي وکړي او د خپل مخلوق سره سختي وکړي په خپلو افعالو کښي، دوي خدايي افعال اود بنده گانو افعال متشابه بولي، او ددوي په دی عقيده هم دي چه د جنت پيداکيدل مخکښي تر جزاء عبث کار دي، ځکه دداسي شی جوړول چه ورڅخه فايده اخيستل دومره ډير وخت وروسته اوصبر کولو ته ضرورت لري څه فايده چه دومره دمخه دهغه خلقت او جوړښت وسي حال داچه په هروخت کي جوړيدل ممکن او اسانه کاروي، دوي د ثابتو دلايلو څخه انکار سول، اوپه دلايلو کښي لاس وهنه او تحريف وکړي او گمراهان سول او هر هغه څوك گمراه دي چه ددوي د شريعت پيروي کوي، «شرح العقيدة الطحاويه» د ابن ابي العز، ص ۴۷۶، او «مقالات الاسلامئين» د اشعري ج ۲ ص ۱۶۸، او «فصل دابن الحزم» ج ۴ ص ۱۴۱،

همدارنگه شيخ علي قاري صاحب وايي: چه معتزله د ميزان او صراط او حساب وکتاب څخه هم منکره دي، په خپلو نا قصو

او ناکاره عقلوسره حال دغه ټول شیان په ثابتو او قاطعو دلایلو سره ثابت دي، خو دوي دغه ټوله پرېښودل اود خپلي خوښي دلایل یي دهغو قاطعودلایلو پر ځاي باندي کښېښودل، دنور ښه معلومات دپاره ﴿ شرح د فقه اکبر﴾ ص ۱۴۱، وګوري، او ﴿ضوء المعالی﴾ وګوري ص ۱۶۸،

که مظلوم ته ظالم وویل: ته به د قیامت په ورځ په دادومره خلقو کښي څنګه ما پیدا کوي په دادومره ازدحام کښي د ورځي د قیامت، په دغه وینا سره کافرکیږي، ځکه دی د قدرت څخه د خدایﷻ منکر سو چه هغه به دی اودده دښمن دقیامت په ورځ سره یوځاي کړي بلکه الله ﷻ قادر دی چه دوي به سره یو ځاي کړي اودهر مظلوم حق به د ظالم څخه واخلي،

﴿ فتاوي التتاخانیه﴾ ج ۵ ص ۵۰۱،

که چا وپوره وړي ته وویل: که زما حق نن رانکړي د قیامت په ورځ به ډیر راکړي، که پوره وړي ورته وویل: نور هم راکړه د قیامت په ورځ به ښه ډیر درکړم، یاوایي اوس یي پرېږده بیابه یي د قیامت په ورځ درکړم، کافرسو. ځکه ده د قیامت ورځ لیري وبلل، چه کله به د قیامت ورځ راځي؟ یاد قوع څخه د ورځي دقیامت منکره سي ﴿ابن قطلوبغا﴾ په خپل کتاب ﴿ من یکفر ولم یشعر﴾ لوحه: ۲۱،

کچا وخپل پوره وړي ته وويل: زما پيسي اوس په دی دنيا کښي راکړه په ورځ د قيامت هلته پيسي نسته، نيکي او ښه عملونه به درخخه اخلم، که هغه پوره وړي وويل: نورهم راکړه بيا د قيامت په ورځ يي راځخه واخله، کافرسو. په څو وجوهاتو سره، يودا چه دده د خبروڅخه دامعلوميږيَ چه ورځ د قيامت نسته، دوهم نه بيريدل او خوف نه کول د عذاب الهی څخه، دريم مسخري او استهزاء کول دی په قرآن او حديث سره چه داخبره پکښي ثابته ده چه په ورځ د قيامت به نيکي اخستل کيږي و حقدار ته به ورکول کيږي، په سننو کښي د امام مسلم راغلي دي چه روايت دي دابو هريره څخه چه زموږ څخه رسول الله ﷺ پوښتنه وکړل، ﴿ اَتَدْرُوْنَ مَاالْمفلسْ قالُوا اَلْمُفْلسُ فِيْنَا مَنْ لاَ دِرْهَمَ لَهُ وَلاَ مَتَاعَ، قَالَ اِنَّ الْمُفْلسَ مِنْ اُمَّيِ مَنْ يَاتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةَ بِصَلاَتٍ وَصِيَامٍ وَزَكَاةَ وَيَاتِي باالْخَيْرَات وَالصَّدَقَات، قَدْ شَتَمَ هٰذَا وَقَذَفَ وَ اَكَلَ مَالَ هٰذَا وَسَفَكَ دَمَ هٰذَا وَضَرَبَ هٰذَا فَيَعْطى هٰذَا مِنْ حَسَنَاته وَهَذَا مِنْ حَسَنَاته فَاِنْ فَنَيْتَ حَسَنَاته قَبْلَ اَنْ يَقْضٰى مَا عَلَيه اَخَذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطَرَحَتْ عَلَيْهِ ثُمَّ طَرَحَ فِي النَّار﴾ الحديث، صحيح مسلم، ج ۴ ص ۱۵۸۵، دحديث شريف ترجمه،رسول الله ﷺ پوښتنه وکړل آياتاسوپوهيږي چه مفلس څوک دي؟موږورته وويل:موږمفلس

وهغه چاته وايو چه پيسي اوڅه سامانونه ونلري،رسول اللهﷺوويل زمادامت مفلس هغه څوك دي چه په ورځ دقيامت به راوستل سي لمونځونه به ئي كړي وي اوروژه به ئي نيولي وي او ذكاتونه به ئي وركړي وي اوخيراتونه اوصدقي به ئي وركړي وي، ليكن يوه ته به ئي ښكنځل كړي وي چاته بدويلي وي،ددي ئي مال خوړلي وي دهغه بل ئيويني توي كړي وي هغه ئي په ناحقه سره وهلي وي،نو دده نيكي اخستل كيږي وهغه طرف مقابل ته وركول كيږي نوكله چه گناهونه ئي خلاص نسي اودهغه مقابل طرف حق بياهم پوره نسي نودهغوگناهونه راواخلي دده پر غاړه ئي ورواچوي او دي سره ددغه ټولوبنواعمالومستحق ددوږخ وگرځي،دغه دي اصلي او حقيقي مفلس،

كه چاوچاته وويل: په دی دنيا كښي غنم راكړه په آخيرت كښي به اوربشي دركړم، يايي برعكس وويل، كافرسو. ځكه دده په خبرو كښي ښكاره مسخري او استهزاء موجوده ده،

په فتاوي الضعرى او قاضی خان كښي راځي: كه چاوچاته وويل: اوس په دی دنيا كښي لس افغاني په پور راكړه په آخيرت كښي به شل افغاني دركړم، كافرسو. ځكه ده دَ قيامت ورځ سپكه وبلل، ياورڅخه انكار دي چه قيامت او اخيرت

نسته، خوځيني مشايخ بيادغه سي ويناكونكي كافرنه بولي، ﴿فتاوي قاضى خان، ج ۴ ص ۴۷۰﴾

که چا وويل: زمايي په محشر او قيامت څه کار؟ يايي وويل: زه د محشر څخه نه بيريږم، يايي وويل: زه د قيامت څخه نه بيريږم، کافرسو. ابن قطلوبغا، من يكفر ولم يشعر، لوحه ۲۱، ﴿الحادي للفتاوي الحصيرى﴾ لوحه ۱۷۵،

په حاوي کښي راځي: که چا وويل: يايي داعقيده وه چه په ورځ د قيامت غيرله بني ادمانو نور حيواناتو او بل شى ته حشر نسته، کافرسو. په سبب د ثبوت د قصاص په مابين د حيواناتو په احاديثو سره وروسته تر حساب کولو بيا ورته ويل کيږي، چه اوس نو بيرته خاوري سي، کفار چه دا صحنه ويني نو ډير دزړه د درد څخه ووايي: ﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَالَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا﴾ سورة النباء، آيت نمبر ۴۰، په ورځ د قيامت د ډيري سختي څخه کفار به ووايي: کاشکي موږ هم خاوري سوي واي،يعني کاشکي زه خاوري واى په دنيا کښي چه هيڅکله پيداسوي نواى، ځکه چه دهمدغه پيدا ښت له سببه دحساب اوکتاب په عذاب اخته سوي يم، او ځيني بيا وايي کاشکي خاوري واي او هيڅ پيدا سوي نه واى، او هغه احاديث چه په هغه سره د حيواناتو قصاص ثابت سوي دي هغه دادي چه مسلم د جناب ابي هريره ﷺ څخه روايت کړيدي هغه وايي چه

موږ ته رسول اللهﷺ وويل: ﴿ لَتُؤَدّنَّ الْحُقُوْقَ اِلیٰ اَهْلِهَا یَوْمَ الْقِیَامَةِ حَتی یُقَادَ لِلشَاةِ الْجَلْحَاءَ مِنَ الشَاةِ الْقَرْنَاءِ﴾ الحدیث، مسلم ج ۴ ص ۱۵۵۸،

ترجمه: اللهﷻ په ورځ د قیامت وهر حق درلودنکي ته پر بل باندي دهغه حق ورڅخه وراخلي او وربه یي کړي، حتی د بی ښکره پسه حق به د ښکره ور پسه څخه واخلي چه دغه ښکره ور پسه دی په دنیا کښي دغه بی ښکره پسه په خپلو ښکرو سره وهلي وي،

که چاوویل: نه یم خبر د څه شی دپاره زه خدای ﷻ پیدا کړی یم؟ او ولي ماته هیڅ مال ا و دولت نه دي راکړی؟ او ددنیا د خوندونو او لذتونو څخه یي یولذت هم ندی راکړی؟ ابو حامد الغزالي وایي چه کافرسو، ځکه دی خدایتعالیﷻ دپاره دخپل عبادت او معرفت وپیژندني پیداکړیدي، اوده دغه ونه پیژندل، اود الله ﷻ پر دغه مبارك قول باندي یي اعتراض وکړي چه فرمایي: ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلاَّ لِیَعْبُدُوْنَ﴾ سورة الذاریات، الآیت ۵۶،

اونه دي ما پیدا کړي پیریانان او انسانان مګر ددی لپاره چه دوي زما عبادت وکړي،

شیخ الهند رحمة الله علیه ددی آیت ترجمه داسي کوي، اوهرڅه چه مو پیدا کړي دي پیریانان او انسانان دپاره د

بندګي خپلي يعني دهغو دپيدا کولو څخه شرعاً بندګي مطلوبه ده، نو ځکه خلقتًا په دوي کښي داسي استعداد اېښودل سويدي، چه که وغواړي په خپل اختيار د بندګي په لاره کښي تلای سي، داسي خو د کونيه او قدريه په اعتبار هريو شی دهغه دتکويني حکم په مقابل کښي عاجز او ناتوان دی، ولي داسي يو وقت هم راتلونکی دی چه ټول بندګان په خپلي ارادي دعالم تخليق دا شرعي غرض پوره کوي، په هر ډول او طريقه چه وي تاسي پوه کوي چه په پوهولو سره دا شرعي مقصود لاس ته راځي، تفسير کابلي د مديني منوري چاپ،

که چاوويل:نه يم خبر دا فلانکی بيا خدايتعالیﷻ دڅه شی لپاره پيداکړيدی، کافرسو. ځکه د خدايتعالیﷻ پر خلقت يي اعتراض وکړي او ورڅخه انکار سو.

که چاوويل: که خدایﷻ هم راته ووايي چه د فلانکی سره و جنت ته ننوزه لاننوزم،دغه سړی في الحال کافرسو، ځکه ده دامر څخه د خدايﷻ په آينده کښي انکار وکړي، اونه منل اونه قبلول د خدايﷻ د امر کفردی، ﴿ بحرالرايق﴾ ج ۵ ص ۱۳۱، ف﴿تاوي د قاضي خان ج ۴ ص ۴۴۷،

په خلاصه کښي راځي: که چاوويل: که خدايتعالی ﷻ بيله تا څخه يابيله فلانکي څخه جنت هم راکړي نه ور ننوزم اونه يي

غوارم، یایي داسي وویل: دفلانکي سره جنت هم نه غوارم، یاد فلانکي د ملاقات او لیدلو په خاطر جنت نه غوارم، کافر سو، ځکه د خداي ﷻ د ارادی سره یي معارضه وکړل،

﴿خلاصة الفتاوي﴾ د طاهر بن احمد البخاري لوحه: ۳۵۷،

﴿بحرالرایق﴾ ج ۵ ص ۱۳۱، ابن قطلوبغا، ﴿من یکفر ولم یشعر﴾، لوحه:۲۲، او مسایل البدریه، وگوري د فتاوي الظهیریه، د بدر الدین عینی لوحه ۱۳۴،

که څوك ووایي که خداي ستا په خاطر جنت را کوی یاددی کارپه خاطر جنت راکوي لایي نه غوارم، کافرسو. ځکه د خدایتعالیﷻ د ارادی سره یي معارضه وکړل،

که چاوچاته وویل: دنیا پریږده خدایتعالیﷻ به آخیرت درکړي، که ده وویل نه یي پریږدم، زه نقد په پور نه بدلوم،کافرسو ﴿خلاصة الفتاوی﴾، د طاهر بن احمد بخاري لوحه ۲۵۷،

په ظهیریه کښي راځي: که سړی ووایي په دنیا کي د ډوډي په غم نیولي یوچه په اخیرت کي بي په څه غم سره نیولي یو،

په ﴿ محیط ﴾کي راځي: که چا دغه خبره د اکراه په شکل سره وکړل یعني په بده او مستنکره ډول سره یي وکړل، یایي وویل: څه وکړم کافرسو. کافرسو بیله خلاف و اختلاف څخه،

﴿فتاوی تتارخانیه﴾، ج ۵ ص ۵۲۹،

که چاوویل: نه ثواب غوارم او نه عقاب غوارم، د دوارو څخه بیزاره یم، یاد مرگ او ثواب څخه بیزاره یم، ځیني علماء وايي په دغه خبره سره کافرکیږي، په سبب د انکار دیوه داسي قول چه هغه باالانقطاع په دلایلو قطعي وو سره ثابت سویدي لکه ثواب او عقاب، اوراتله د مرگ بیله شك او ارتیاب څخه، صحیح خبره داده چه نه کافرکیږي، ځکه د بیزاره څخه مراد او معنی داده چه زه هیڅ توجه او التفات نه ورته کوم،

په خلاصه کښي راځي: که چا وچاته وویل: زه د دوږخ تر دروازي پوري ستا سره ځم لیکن درسره نه ننوزم، کافرسو. «خلاصة الفتاوی» د طاهر بن احمد البخاري لوحه ۳۵۷، په دی کښي دا معنی سته یعني زه ستا سره په هره گناه او معصية کښي شريك يم بيله کفر څخه،

که چاوویل: چه دوږخ ته ځي لاهم درسره ځم په نزد د ځینو علماؤ کافرسو. په خبرو سره، او ځیني علماء وايي څنگه کافرکیږي ترڅو يي کفر نه وي کړی؟

په فتاوی الصغری کښي راځي: که د چا ناجوړي ډيره سخته سول، او دغه مريض وويل: خدایﷻ مي دي مړکی، په هررنگه چه وي که پر اسلام وي اوکه پر کفر وي خو چه ددغه مرض څخه خلاص سم، کافرسو. ځکه ده کفر او اسلام يو شاني مساوي وبلل، که څه هم ده دغه خبره مبهماً مشابه کړه،

که چاوويل: چه په رنګارنګ مصيبتو سره اخته او مبتلاوي، ووايي: يا خدايه ﷻ مال و دنيا دی راځخه واخستل او داسي وداسي دی راسره وکړل، نور څه راکوي او غواړي نورلا څه راوکړي، یاووايي: نور لا څه راکوي څه لا پاته دي چه راوييي کړی؟ او داسي نوري خبري چه ددغه مشابه وي، عبدالکريم بن محمد وايي کافر کيږي، نور بايد دده دهيڅ خبري تصديق ونکړه سي، که څه هم داخبري په خطا ورځخه وکړه سي، ځکه ده پر ماضي او راتلونکي باندي اعتراض وکړي، ﴿ فتاوي الصغری﴾ د حسام الدين عمر بن عبدالعزيز، لوحه ۳۲۶،.

په جواهر کښي راځي: که چا وويل: نوڅه به راوکړي که عذاب راکړي يايي نکړي راعذاب کافرسو، ځکه دده د خبرو ځخه معلومه سول چه يعني زه د عذاب د زغمولو قدرت لرمه، ﴿فتاوی الجواهر﴾

که چاوويل: که څوك يوه ملا فقير ته يو درهم ورکړي د خوشحالي ځخه ډول وهي يا ملايکي ډول وهي د قيامت په ورځ په اسمانو کښي يا په ورځ د قيامت، کافر سو. ځکه ده دعوه د غيبو وکړل، اوپر ملايکويي باندي درواغ وويل،يايي دلغوي اوبدشی‌نسبت ورته وکړي،

زبدة الفتاوی، لوحه ۳۸۰، او وملايکو ته يي دبدو نسبت وکړي هغه داچه خدايتعالیﷻ د ملايکو په باره کښي ښه

فرمایي : ﴿ یُسَبِّحُوْنَ اللَیْلَ وَالنَّهَار لاَ یَفْتَرُوْنَ﴾ سورة الانبیاء ایت نمبر ۲۰، یعني ملایکي سهار او ماښام تسبیح وایي او هیڅکله د خدای ﷻ په عبادت کښي سستي نکوي، اودغه سړي وویل: چه ملایکي به ډول وهي دویته یي د لغوي او ناحقه کار مناسبت وکړي، ﴿الجامع لاحکام القرآن﴾ ج ۱۱ ص ۲۷۸،

په ظهیریه کښي راغلي دي د ساحر مرگ روا دي ودی وژل سي که څوك خبرسي چه په رشتیا سره ساحر دی، نه یي توبه قبلیږي، اونه یي باید خبره ومنله سي تر څو د سحر څخه لاس وانخلي اوپري نږدي او توبه ورڅخه ونه کاږي،

که چاوویل: زه جادوگر او ساحر یم وژل یي حلال دي، هو: که خلقو دده پر سحر او جادوگري باندي شاهدي ادا کړل،

که چاوویل: زه په خوا جادوگر او ساحر وم، خو اوس مي د ډیري زماني څخه پري ایښي دي، دده داخبره باید ومنل سي، او باید ونه وژل سي، که ده خپله دغه خبره په شاهدانو سره ثابته کړل، د کوډگر هم دغه حکم دي، فتاوی الظهیریه، لوحه: ۱۳۶، فتاوي الصغری، لوحه ۳۲۸، ﴿ بحرالرایق ﴾ ج ۵ ص ۱۳۰، د امام اعظم په نزد فتوی ده، باید د جادوگر توبه قبوله او ومنله سي، فقیه ابواللیث وایي د جادوگر توبه دی ومنله سي چه توبه وکاږي باید ونه وژل سي، که یي بیا سحر او

جادو کول شروع کړل بیا دی توبه نه قبلوي او ودي وژني، د زندیق هم دغه فتوی او حکم دی، کوډګر هغه ته وایي چه خلق په غیبو خبروي، یاوایي زه په آینده او راتلوکي خبر یم، یاوایي زه په غیبو خبریم، او وایي زما سره علم الغیب سته، ددغه او د جادوګر یو حکم دی، که توبه نه کاږي ودي وژل سي،

نصراني باید د مسلمانانو په ښار کښي په خپل کور کښي هم باید دخپلودیني مراسیمو زنګ ونه وهي، اونه هم کولای سي چه د خپلي کلیسا مراسم د باندي وبازارته راوباسي، اونه هم اهل الذمۀ والا خپل دیني مراسم د مسلمانانو په ښار یا کلی کښي په ښکاره توګه په بازارو کښي اجراء کولای سي، اونه هم کولای سي چه دخپلو دیني شعایرو لباس واغوندي په خپلو خاصو ورځو کښي،

اصلاً زنار باید د وړیو څخه وي اود نصراني لنګوټه ترل یا اغوستل یي عادي وي، او دا بریښمو زنار اچول یوه جفاء ده د مسلمانانو په حق کښي اود مسلمانانو د زړو ماتول دي،

دابیره سته چه د فقیرو او بیچاره مسلمانانو زړونه د کفر خواته مایله سي، ځکه نه ښایي د مسلمانانو په ښارو کښي دوي و خپلو مراسیمو ته پریښودل سي،

که د چا پلار مسلمان وي او مور يي ذمي وي، اولاد يي بايد د مور فرمان برداري ونکړي، بايد خپل دغه د عبادت د ځاي په عوض کښي يي وکورته بوزي ځکه د طاعت او عبادت وځاي ته د ذميانو بيول گناه ده، ﴿ لاَ طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقْ ﴾ يعني د مخلوق طاعت بايد ونکړل سي چه په هغه کښي د خالق تعالیٰ ﷻ نافرماني وي، ددواړومور او پلار تلل وکورته مباح او ښه کار دي، پلار ته ښايي چه د خپلي ښځي او زوي دواړو ترغيب و دين ته د اسلام وکړي، شايد و سمي لاري ته د حق سبحانه وتعالیٰ ﷻ مراجعه وکړي، په توفيق سره دالله تعالیٰ ﷻ به ددواړو اخيره خاتيمه په خير سي،

مسلمان ته لازمه ده چه هميشه په خدايتعالیٰ ﷻ سره د کفر څخه پناه وغواړي، او سهار ومابښام دا دوعاء وکړي، چه دا د کفر څخه د نجات او خلاصون لاره ده،په فضل سره دخداي ﷻ هغه دوعاء داده:

﴿ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اُشْرِكَ بِكَ شَيْئاً اَعْلَمْ وَ اَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لاَ اَعْلَمْ وَ اَنْتَ عَلاَّمِ الْغُيُوْبَ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِا اللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ ﴾

په دی سره مور د خپل دی کتاب خاتيمه کوو، په دنيا کښي د الله تعالیٰ ﷻ په دنيا او اخيرت روغتيا او سلامتيا غواړو او د الله تعالیٰ ﷻ څخه غواړو چه خاتيمه مو په خير کړي، په دی

دنیا کښې مو د غمو څخه وساتي اوپه اخیرت کښې خپل
دیدار او رضاء زمونږ نصیب کړي، الله تعالیﷻ زمونږ ناصر او
مددګار دی په هر څه کښې، حمد او ثناء وستاینه دي وي ده لره
او درود و سلام دي وي پر جناب محمد خیر الانام صلی الله
علیه وسلم وعلی اله الطیبین الطاهرین امین یا ربّ العالمین.

## اخیرني خبرني

ډیر حمد او ثناء وستاینه دي وی وهغه ذات ته چه خپل فضل و
اکرام یي را باندي کړیدی، او درود وسلام دي وی پر محمد
بن عبدالله باندي چه دده په وجود سره یي رسالت و اکمال ته
ورساوه او درود او تبرکات دي وي تل ترتله پرده اودده پر اهل
و اولادو دده پر اصحابو او تابعینو باندي، وروسته د حمد او
ثناء څخه دلوي رب العزت ډیر ممنون او شکر ګذاره یم چه
ماته یي دومره توفیق راکړي چه د علم او پوهي دیوه روښانه
څراغ دکتاب ژباړنه وکړم، داکتاب چه د شیخ علامه
بدرالرشید تصنیف دی او جناب شیخ علی القاري ورباندي
شرح کړیده، زه د الله ﷻ ډیر ثناء خوان یم چه هغه قادر مطلق
ماته دومره طاقت او توفیق راکړي چه دا ګران بهاء تالیف په
پښتو ساده ژبه سره وخپلو پښتنو ورونو ته وړاندي کړم، او د
لوي خداي ﷻ څخه غواړم چه هر عام و خاص ته موجب د

فایدی وگرځي، که څه هم دا بحث زما څخه وډیر بحث او تلاښ ته ضرورت درلودی خومابیاهم ډیر کوشش وکړي څو خپل مقصد او هدف ته ورسیږم، همداوو چه دالله ﷻ په مرسته وهدف ته ورسیدلم او ومي کړای سوای چه ددی گران بهاء کتاب په ژباړلو سره موفق سولم،

په اخیره کي ددی څیړني غواړم تاسوته ددی کتاب چه اوس ستاسو په لاس کښي دي، هغه څو مهم نقاط درته وړاندیکړم کوم چه ددی کتاب د ژباړلو څخه پلاس راغلي دي،

اول- ددی څیړني او بحث څخه داراته معلومه سول، هغه داچه امام شیخ علی قاری ﷺ خپل ټول ژوند په علم او درس وتدریس کښي تیر کړی، ترڅو د خپل عصر او زمان د مشهورو علماؤ څخه وگرځیدي، اوپر ټولو اسلامي علومو او معارفو باندي لاس بری سو، همیشه به یي هغه کار کاوه چه هغه به په شرعی دلایلو سره ښکلي سوي وو، په کومه مسئله باندي چه به شرعی دلیل نه وو په سختي سره به یي د هغه مخالفت کاوه، که به څه هم ویونکی د هري مرتبي ومنصب خاوند وو، یابه دهر څومره علم ومعرفت خاوند وو، جناب قاری صاحب به دهغه مخالفت کاوه، که به چیري هغه په تعصب او په ړانده تقلید سره دهغه شي منته او پیروي کوله اوده به هغه تعصبي تقالید ډیر بد او مذموم گڼل،

دوهم- مولانا علی قاري صاحب دهغه مشهورو علماؤ څخه وو چه د عقیدي درس یي ووایه، اود وخت پر مبدتعینو یي سخت سخت گذارونه وکړل، ځکه یي په دی لاره کښي په زرهاو کتابونه تصنیف کړل، چه یو دهغو څخه یي دغه مهم کتاب دي چه اوس ستاسو په لاسو کښي قرار لري، چه خدایتعالی ﷻ یي زه په ژباړلو سره بریالی کړم اومانه یي دا توفیق راکړي چه خپلو پښتنو ورونو ته دغه دویاړه ډك خدمت وکړم،

دریم- مولانا صاحب علی قاري د سختو معارضینو او مخالیفینو څخه د علم کلام وو، اوهم د علم کلام د ویونکو او زده کونکو معارض او مخالف وو،

هیڅکله د متکلمینو د خبرو او مباحثو تر تاثیر لاندي نه راتلی که څه هم دده په عصر کښي خلقو وعلم کلام ته زیاته توجه کوله، ځینو مسئلوته یي دکلام الله د مسائلو په شاني قدرورکاوه،

د علم کلام د عالمانو به ډیر قدر وعزت کیدی او خلقو د عزت په نظر ورته کتله،

څلرم- جناب علامه شیخ علی قاری صاحب د وخت د بیکاره او منحریفینو صوفیانو ته یي ده رد ﴿ خوله ماته ﴾ ډیر سخت او باجرئته جوابونه ورکړل، لیکن سره ددغه په صوفیانو او ښو خلقو کښي د اهل وسنت جماعت ښه پیروان هم سته، دوي

داسي کسان دي چه په قرآن او حدیث پوري خپلي منګولي مضبوطي او ټینګي نیولي دي، اوخپل ټول اعمال په قرآن او حدیث سره تلی، پر دغو کسانو باندي هیڅ اعتراض نسته، دوي د هغه بیکاره او منحرفو صوفیانو څخه مثتثنی او جلا دي، دښو حمیدة صفاتو درلودنکي دي اوپه دوي کښي د ښه علم خاوندان هم سته،

پنځم- زماپه عقیده اول کتاب چه د کفری خبرو په باره کښي تصنیف سویدي، هغه ﴿کتاب الفاظ الکفر﴾ د مولانا علامه بدر الرشید صاحب دي چه مؤلف یي په پوره اعتماد سره په ټولو علمي مادو کښي د اصلي مصادرو اود قابل اعتبار علماؤ د اقوالو څخه استفاده کړیده،

شپږم- امام علی قاري صاحب د علامه بدر الرشید صاحب پر کتاب ﴿الفاظ الکفر﴾ باندي اولین شخص دی چه شرحه یي ورباندي کړیده، چه ودی کتاب ته یي نور علمی لوړ اهمیت ورکړی، زما د علمي نظره څخه یي دا کتاب دنورو څخه ممیزه او خاص کړي، او د مسئلو داسانه کولو دپاره یي د تعبیر او معنی له نظره څخه ډیر اسانه کړی دي،

اوم- دغه کتاب اصل ددی فن او باب دی، او راټولونکي د مهمو مسائلو دي په دغه باره کښي، دداسي مشهورو مشهورو علماؤ د فتاوی وو څخه په دغه موضوع د تکفیر

کښې استفاده کړیده خاصةً د حنیفي فقهي علماؤ چه هغو دغه یوه مهمه مرجع ګرځولي ده، درجوع کولو څخه د پخواني علماؤ د کتابو څخه یي خلاص کړي یو، کوموچه هغو هم دغه د تکفیر موضوع راوړي وه او څیړلي ده،

اتم- د تکفیر مسئلي رنګارنګ او ډول ډول دي، اوهم بیخي ډیري دي، چه ځیني علماؤ په دغه مسایلو کښې یودبله سره اختلاف هم کړیدي، د خپل فکر او علم د نظره څخه په شرعي دلایلو کښې اوپر هغه چاباندي چه دغه حکم یي صادر کړیدي، اوپه دغه کتاب کښې راغلي دي، چه د ځینو خاوندانو د علم اقوال ضعیفه دي او هغه ډیر تشریح او توضیح ته ضرورت لري، اوما تر خپله وسه داسعي او تلاښ وکړي چه دغه سی مسئلې جلا او واضیحي کړم په دغه کتاب کښې، او په ښه دقیقه توګه سره یي وګورم، اوهغه پټ غوامض ورڅخه لیري کړم، او ستاسو حضور ته صحیح مسئله په قوي دلایلو سره وړاندي کړم،

نهم- جناب مصنف ﷺ کوم مسایل چه په دغه کتاب کښې راوړیدي دهغو دپاره یي دري طریقي وضعه کړیدي، هغه کفري الفاظ، یا کفري خبري راوړیدي په دی کتاب کښې چه پر هغو باندي دلیل او استنباط شرعي وجود ولري، اوباید ددغو شیانو څخه خالی نه وي، هغه دری شیان دادي لکه

مسخري کول او استخفاف وسپکاوی کول په دین پوري او حلال بلل د حرامو شیانو،

لسم- مسئلی د تکفیر هغه دي چه مربوط وي وعد او وعید یي په اخرت پوري چه هغه د دوستي او دښمني سره تعلق ولري، اوپه وژنه او ساتنه پوري اړه ولري اونور داسي په دی دنیا کښي. خدایتعالیﷻ جنت دپاره د مؤمنانو واجب گرځولي دی اوپر کفارو باندي حرام کړي دي،دغه کلیه احکام دی په هر وقت او زمان کښي.

یوولسم- کله چه ماپه دغه باره کښي بحث او تدریس وکړي په باره کښي د اقوالو د اهل العلم نو ودي نتیجي ته ورسیدلم چه علماء د حنیفي مذهب په دغه باره کښي ترهر چا ډیر بحث او تشدد کړیدي

په موضوع کښي د تکفیر د نورو مذاهبو تر فقهاؤ او علماؤڅخه،

دولسم- د معین تکفیر په باره کښي احتیاط کول ډیر ضروري او لازمي دي، په نزد د اهل سنت او جماعت سړي په احتمالي الفاظو او خبرو سره نه کافرکیږي، ځکه کفر د سزا او عقوبه اخیره او نهایه ده، په دغه سره سړی د گناه او جنایت و آخیري اوج ته رسیږي، نونه ښایي په احتمالی خبرو سره پر چاباندي د کفر حکم او استدلال وکړه سي په کفر معین سره،

دیرلسم- موضوع د تکفیر موضوع سره ددومره لیکني او مباحثي بیاهم وډیر نوربحث او درس وڅیړني ته ضرورت او احتیاج لري، په دی لاره کښي مادډیرو خطی نسخو او کتابو څخه اخستنه کړیده، او د ډیرو جیدو علماؤ د لیکنو او مباحثو څخه مستفید سوی یم چه هره لیکنه مي په ډیر دقت او اهمیت سره مطالعه کړیده، ددی دپاره چه داماته ډیره خطرناکه موضوع ښکاریدل داسي نه چي پکښي زیاتوب یا کمبود راڅخه وکړه سي، ځکه په دی عصر کښي ډیر داسي نوي الفاظ او خبري راښکاره سویدي چه هریو یي سړی وکفر ته رسوي، نوځکه ضروري مي وګڼل چه هغه ټوله په ډیر احتیاط سره راټول کړو اوهریو په یوه جلا فصل کښي کښیږدو په ښه تفصیل سره،

څلورلسم- اخیراً باید دا ووایم، چه بشري کارونه اواعمال هر وخت د خطاء او ښوئیدلو سره لاس وګریوان دي، لکه څنګه چه اللهﷻ په قرآن کښي فرمایي: ﴿ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللَّهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا ﴾

سورة النساء الآیت، ترجمه: که چیري غیرله دغه یوه خدایه څخه نور خدایان وای نوتاسو به په وجود کښي ددی کون او کائناتو ډیر اختلافات او بدلونونه لیدلي وای، پر دی باندي ښه یقین لرمه او په دی عقیده یمه چه پر هغه څه باندي د

خدايتعالی ﷻ احاطه ده او هر شی دده تر حکم لاندي دي، ښه به داوي چه هر څه ښه د الله ﷻ د جانبه څخه دی اوغيرله دغه څخه چه دي هغه زموږ او شيطان څخه دي، نو هميشه او هرکله بايد د خدايتعالی ﷻ څخه استغفار او بخښنه وغواړو اوتل تر تله ووايو: ﴿لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ اِلاَّ بِاللهِ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمِ﴾

اود لوي خداي ﷻ څخه وغواړو چه زموږ تر تجاوزاتو راتيرسي اوپه خپل غفوريت سره مو وبخښي، اودده څخه غواړو چه مغفرت او اخلاص موپه کارو او خبرو کښي راپه برخه او نصيب کړي او يوی داسي لاري ته مو هدايت کړي چه هغه لاره دعلم او عمل نافع وي، اود لوي رب العالمين څخه غواړو چه موږونوروته د هدايت وسيله وګرځوي او هداة المهتدين راڅخه جوړ کړي، دی زموږ بادار اوښه لارښود دی او پر هرڅه باندي قدرت لري او قادر مطلق دی، ﴿وَ آخِرُ دَعْوانَا وَالْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَ صَلَّی اللهُ وَسَلَّمَ عَلٰی نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ وَعَلٰی آلِهِ وَ صَحْبِهِ اَجْمَعِيْنَ، وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِاِحْسَانٍ اِلٰی يَوْمِ الدِّيْنَ﴾دلوي خداي ډير شکر اواحسان دی چه تر ديځايه پوري ددی مبارک کتاب ژباړه وپای ته ورسيدل اودالله ﷻ څخه تل غواړم چه نوري داسي نيکمرغي هم را په نصيب کړي چه وخپلو پښتنوورونوته مصدرښه خدمت وګرځم،آمين ثم آمين،

ژباړونکي الحاج مولوي عبدالعزيز ((تسليمي))

